2018

د افغانستان اسلامي جمهوري دولت
لوړو زده کړو وزارت
شیخ زاید پوهنتون
ژورنالیزم او عامه اړیکو پوهنځی
عامه اړیکو څانګه

# د اړیکو اساسات

# Fundamental Of Communication





لیکوال: پوهندوی محمدخان نیازی

۱۳۹۷ هـ ش
کال

## د دوهم چاپ سریزه

یو ویشتمه پیړۍ د تکنالوژۍ، اطلاعاتو، اقتصاد او ارتباطاتو پیړۍ ده. د نړۍ ټولو (سیاسي، اقتصادي، نظامي، کلتوري او تجارتي) مسایلو زیانونه او ګټې؛ ځمکنۍ، هوايي او سمندري لارې سره شریکې دي. دوی چې څه پریکړه وکړي پر نورو یې مني، خو د پریکړو او کړنو په کولو کې له داسې الفاظو ، ویناوو، اصولو او تکتیکونو څخه کار اخلي، چې خپلې کړنې او تصامیم پر ډېر مهارت او درایت سره پر نورو مني. د همدې موخې او هنر لپاره اړیکو ته جدي ضرورت دی ځکه بې اړیکو هیڅ سرته نه رسیږي. د **(د اړیکو اساسات)** دا علمي اثر هم د انسانانو تر منځ د اړیکو نیولو لارو چارو ته ځانګړې شوی دی، څو د ژورنالیزم او عامه اړیکو پوهنځیو محصلان وکولی شي له بشري پرګنو، ډلو او ادارو سره په مهارت، درایت او وړتیا اړیکې ونیسي.

د ارتباط دغه علمي اثر د دوهم ځل لپاره چاپیدل د هیواد دعلمی ټولنې هغو نیمګړتیاوو ته په کتو لیکل شوی، چې په تیرو ۱۳ کالونو کې موږ د علمي تجربې ، پوهې ، زده کړې او تدریس په بهیر کې درک کړې دي. په ۱۳۸۷کال کې د پوهیالي له علمي رتبې څخه د پوهنیار علمي رتبې ته د دې اثر چاپیدل یو خوب ؤ ، موږ نابلده وو له ډیرو هڅو، منډو ترړو او مشکلاتوسره مو نوموړی اثر چاپ کړ، خو کله چې چاپ شؤ د ژبو او ادبیاتو پوهنځي مشر استاد فیض محمد فیاض، د پوهنتون د محصلانو او استادانو له خوا یې ښه هرکلی وشو او کله چې د هیواد په کچه د کادري ازموینو په جریان کې ترې ډیرې پوښتنې راغلې، نو زه یې پدې ډاډه کړم چې دا اثر د دوهم ځل لپاره بیا اماده او له سره یې په غور وګورم څو شته نیمګړتیاوې اصلاح، د سیمې او وخت د علمي کاروان له لښکر سره یې همسفر کړم، نو دهمدې ضرورت په اساس مو د کتاب په دوهم ځل چاپ لاس پورې کړ.

په دې کتاب (د اړیکو اساسات) کې مو داسې معلومات ور اضافه کړل چې د ژورنالیزم او عامه اړیکو په فاکولتو کې ورته په مسلکي او علمي لحاظ کره او جدي ضرورت ؤ د بېلګې په ډول د ماډل په پیژندنه، موخې، ځانګړتیاوې، وړتیاوې، ارزښت او همدارنګه مې دځینو مشهورو عالمانو په ماډلونو هم رڼا اچولې. د هغوی نیمګړتیاوې مې په ګوته کړې دي ځکه د تیر وخت او دې زمانې عصري غوښتنې

ډېر توپیر  سره لري، په تفصیل سره خبرې ورباندې شو، په هره برخه مو رڼا اچولې ده  او په ځانګړي ډول مو د اړیکو په مخ کې پر شته خنډونو په زړه پورې معلومات درنو لوستونکو او د ژورنالیزم او عامه اړیکو محصلانو ته وړاندې کړي دي.

دا چې ټولنیز علوم کال پرکال بدلون مومي، پوهان او عالمان يې نوي معلومات وړاندې کوي، خدای د وکړي چې د ژورنالیزم او عامه اړیکو پوهان نور هم وپنځيږي او زموږ د ژوند ټول اړین  معلومات  او ضرورتونه د خپلو علومو په رڼاکې پوره کړي. په دې مې د خپل پوهنځي اړوند بالخصوص له ټولو مسلکي استادانو څخه هیله ده چې هر یو هرچیرې، هر څومره وړتیا لري باید کار وکړي څو افغانان هم د نړۍ په شان په ټولو علومو کې فعاله ونډه ولري.

په خورا درنښت

پوهندوی محمد خان نیازی
شیخ زاید پوهنتون د ژورنالیزم او  عامه اړیکو پوهنځی
د عامه اړیکو څانګه

د لاربنود استاد تقریظ

انسان یو ټولنیز موجود دی او ټولنه له اړیکو څخه جوړیږي ارتباطات (Communication) د یوې ټولنې په جوړښت کې بنسټیز او اساسي نقش لوبوي.

ټول انسانان له خپل ځان او نورو سره په هره شېبه کې اړیکه نیسي انساني اړیکې نه یواځې مادي بڼه لري، بلکه ډېرې معنوي ځانګړتیاوې هم په کې نغښتي دي.

انساني ټولنه له مفهومي اړیکو (Communication) نه پرته خپله مفهوم او ارزښت له لاسه ورکوي.

ټول غږیز او بدني حالات یا علامې حرکات او نښې د ارتباطاتو له کبله یو مفهوم او پیغام لري، چې د ټولنې غړي سره نږدې کوي یو دبل غوښتنې او تجربې سره انتقالوي .

انساني فرهنګ او پوهنه له ارتباطاتو نه سرچینه اخلي او هر کله، چې څېړونکی غواړي د یوې ټولنې څرنګوالی او فرهنګي اړخ تر تحقیق لاندې ونیسي. د هغې ټولنې د ارتباطاتو یا اړیکو په هکله څېړنه کوي.

د اړیکو (Communication) ډولونه له ژورنالېزم سره ډېر نږدې والی لري او د ژورنالېزم د پوهنځي په نصاب یا (Curriculum) کې یوه اساسي برخه ده، چې هر ژورنالېست یا خبریال د خبر (News) ګذارش (Reportage) یا مرکې (Interview) او نورو ژورنالیستیکو ژانرونو (Genres) د لیکلو په وخت کې باید ورباندې پوه وي.

فردي او ډله ییز ارتباطات (Communication) له منبع څخه تر مقصد پورې یا د ارتباط د پیل څخه تر بشپړ پوهېدنې پورې ځینې عناصر یا الزامات لري، چې د تحقیق او څېړنې وړ دي. په دغه څېړنه کې محترم پوهیالي محمد خان نیازي د ارتباطاتو (Communication) په باره کې ډېر ګټور اصطلاحات او مهم ټکي روښانه کړي دي، چې د ستاینې وړ دي زه یې د لرښود استاد په حیث تاییدوم .

د اړیکو ډولونه، عناصر، ارزښتونه، د تجربو او مشاهدو تبادله، داخلي او خارجي اړیکې، د ټولنیز پرمختګ اصول، د پیغام لېږدونه او اخیستنه، د پیغام اغېز او اساسي ستونزې په دغه اثر کې ځېړل شوي دي.

د اړیکو په مخ کې پر پرتو خنډونو او نورو مسلکي اصطلاحاتو په اړه ډېر ښه معلومات ورکړل شوي دي.

همدارنګه په دغه اثر کې د ژبې یا وینا او لیکنه یا غږیز او نه غږیزو اړیکو، چې د ارتباطات له لومړنیو مهمو وسیلو څخه بلل کیږي او د غیر کلامي یا بدني ارتباط ( Body Communication) او د ټولو ډله ییزو رسنیو په باره کې، چې د ارتباط (Communication) او ټینګولو کې پرمختګ بارز رول لري ښه څېړنه تر سره کړې ده او له معتبرو منابعو څخه یې ګټه اخیستې ده، چې د ټولو محصلانو او ژورنالیستانو لپاره یوه ښه او نوې منبع جوړوي چې تر دې دمه بل چا داسې لوړ کار نه دی کړی .

زه د محمد خان د نورو بریالیتوبونو هیله لرم او دغه اثر د محترم پوهیالي محمد خان د ترفیع لپاره کافي بولم او د لارښود استاد په حیث یې تائیدوم.

په درنښت

پوهندوی میر عزیز احمد فانوس

د کابل پوهنتون د ژورنالیزم پوهنځی

د مطبوعاتو څانګې استاد

الله المستعان

ما د محترم محمد خان نيازي دغه علمي ليکنه، چې د ارتباط (Communication) تر عنوان لاندې يې په دوو فصلونو کې ځای کړې ده، په پوره دقت او سوچ ولوستله.

په لومړي فصل کې يې د (ارتباط) مسئله په هماغه ټولو محتوياتو سره، چې اصلي موضوع پرې محاط ده څېړلې او ليکلې ده. په دوهم فصل کې يې د (ارتباط) مهمې وسيلې په ډېر ښه انداز کې بيان کړي دي. ليکنه يې پايله هم لري او ماخذونه يې د اعتبار وړ او کافي دي.

تر هغومره، چې زما پر مسلک پورې يې اړه درلوده، ما دغه ليکنه په ژبنې او ادبي لحاظ سمه کړې او وړ تعديلات مې په کې راوستي دي.

اوس، نو موضوع په ډېره روانه او فصيحه پښتو تياره ده، د تنافر، غرابت او د لغوي قياس څخه په کې د مخالفت، کراهت او ابتذال څخه خلاصه ليکنه ده، زه يې په فوق العاده ډول ستايم ځکه محترم محمد خان هغه څه ليکلي چې د موضع په تړاو ضروري او لازمي دي .

د ليکنې ميتود يې التقاطي بڼه لري، له دغه امله يې خپل اند او صلاحيت ته په کې ډېر کم ځای ورکړی دی، د کره علماوو نظريات يې په ډېر دقت ، درايت ، او علميت سره په مناسب ځای کې ځای کړي دي خو بيا هم مفاهم او د مفاهمو تعريفونه يې په ښه مهارت سره څېړلي او سره يو ځای کړي او داسې يې سره تلفيق کړي دي، چې په لوستلو يې سړی نه ستړی کيږي او يو مغتنم علمي ګټور اثر يې خپلو شاګردانو ته اماده کړی دی. زه په داسې حال کې چې د نيازي صاحب دغه اثر تائيدوم، پېشنهاد هم کوم، چې علمي ترفيع دې پرې ورکړل شي.

زه باور لرم، چې ښاغلی نيازی به په راتلونکي کې د نورو اثارو د ليکنې لپاره لا نور هم هڅه وکړي، چې دغه لاره تعقيب کړي او خپلو شاګردانو ته په زړه پورې ليکنې

وکړي ځکه د نومړي له دې وړې لیکنې څخه داسې ښکاري چې د کره ، علمي او موثقو لیکنو وړتیا لري ، زه یې راتلونکی روښانه او ځلنده ګورم د نیازي د لا وړتیا او علمي پوهې د غوړیدا په هیله .

پوهنوال فیض محمد فیاض

د شیخ زاید پوهنتون د ښوونې او روزنې پوهنځي

د ژبو او ادبیاتو څانګې استاد

# فهرست

شماره عنوانونه مخ

## سریزه

یو ویشتمې پیړۍ کې انسان دخپلو هڅو حرص او فکر په نتیجه کې داسې وسایل اختراع کړل ، چې څو کاله مخکې یې هیڅ تصور نه کیده ، ډله ییزو ارتباطي وسایلو د معلوماتو له انقالولو څخه نور لوړ او لوی کار پیل کړ ی ،خلکو فکر کاوو، چې ډله ییز ارتباطي وسایل به د معلومات ، او اطلاعاتو په انتقال کې چټکتیا راولي حال داچې دې وسایلو ( تلوزیون،رادیو ، او انټر نټ ، چاپي رسنیو ) د مصنوع سپوږمکیو په وسیله د ملتونو د کلتور ، فرهنګو اوثقافت دتغییر لپاره یو لوی انقلاب منځ ته راوست او همدې ارتباطي وسایلو په عملي توګه له نړۍ څخه یو نړیوال کلی جوړ کړ .

د نړۍ په څه د پاسه ۱۹۶ هیوادونوکې د ډلی ییزو رسنیو د اطلاعاتو او معلوماتو باران information rian دومره تیز او زیات دی چې معلومات اخستونکي په خپله نارې وهي چې موږ د معلوماتو اخستونکي نه بلکه ښکار شوي یو .

د رسنیو د باران ، معلوماتو او اطلاعاتو له کبله دملتونو د عقایدو او کلتورو نو دثابت ساتلو په نړۍ کې لوی کړاو جوړکړی دی ، ځکه ډیری هیوادونو د ډله ییزو رسنیو د اغیز له کبله د غربي ځواکمنو هیوادونو تر اغیزلاندې راغلي دي ، غربي هیوادونو د خپلو رسنیو په وسیله د نورې نړۍ د انسانانو اذهان افکار او عقاید له تخریب سره مخ کړي دي ، په دې عصر کې د نړۍ ځواکمن هیوادونه غواړي چې د انسان د بدن پر ځای د انسان په ذهن باندې کار وکړي ، ځکه چې کله انسان په دماغي لحاظ واخستل شی هغه بیا کله هم د غیر مطابعت اراده نه کوي .اوله همدې امله په ننی نړۍ کې د انسان د فزیکي وجود په ځای د انسان دماغي ځواک ته ډیره تر جیح ورکول کیږي ،ځکه چې یو ځواکمن ذهن ډیرو له زورورو متو څخه زیات ځواکمن دی د ارتباطاتو علما لیکي چې :دهني ځواک د بدني ځواک ځای نیسي . Brian pover is Replacing Manpower

نو ځکه خو نن ټوله نړۍ له فزيکي عملي جګړې څخه مخکې فکري جګړه پيلوي، مخکې له دې چې سيمه په جسمي ډول ونيسي د ټولنې اذهان يې د تبليغاتو په وسيله نيولي وي ، چې رسنۍ په دې ډګر کې نه هيريدونکی په زړه پورې رول اداکولی شي .

داچې ډله ييز ارتباطي وسايل په انساني اذهانو دومره فوق العاده ارزښت او اغيز لري نو موږ ته لازمه ده چې په دې اړه په زړه پورې مهم معلومات ولرو او په مناسبه وکره او لازمته توګه ورڅخه ګټه واخلو.

**د ستونزې ارايه :**

رسنۍ نن د نړۍ په ټولو انساني افکارو حکومت کوي ، دتبليغاتو او سړې جګړې لپاره بهترينه اصلي وسيله او په نړۍ کې د څلورم ځواک په توګه منل شوی ځواک دی ،دغربی نړۍ ځينې پوهان يې دو هم خدای بولي ، ځينې يې جادويي مرمۍ ګڼي ، او نن ورځ د انسان د ژند يوه برخه ګرځيدلې ده ، ځکه هغه هيوادونه چې د ديموکراسي نارې وهي هلته رسنۍ لومړی مقام لري ، خو پام مو وي چې ډيری نړيوالې رسنۍ د اسرايلو په واک کې دي .

څرنګه چې دژوند ټول مسايل په اااړيکو پورې تړاو لري ، پرته له اړيکو هيڅ امکان نه لري ، نو له همدې کبله اړيکې په انساني ژوند کې خورا ارزښت لري چې بايد په ډير احتياط وکارول شي نو لازم دی چې په اړه يې پوره او کره معلومات ولرو .

په هيواد کې دتيرو جنګونو له کبله زموږ علمي قشر تر اوسه په دې نه دی توانيدلی چې د اړيکو په اړه داسې يو علمي اثر وليکي څو زموږ علمي کهول ترې په مسلکي لحاظ کره ګټه پورته کړې وای ، او زموږ د ټولنې عصري غوښتنې يې پوره کړې وای ،ما په دې علمي اثر کې د ۲۰۱۰ او دا دوهم ځل مو تر ۲۰۱۷ کال پورې پر ټولو هغو مسايلو کار کړی چې زموږ په ټولنه کې ورته ضرورت وو او او ما د خپلو تجربو په جريان کې لاس ته راوړې دي ، له هغو علمي اثارو څخه مې ګټه اخستې

چې د ژورنالیزم مشهورو لیکوالانو لیکلي دي  د دې اثر لیکل یو مبرم ضرورت وو ځکه چې مسلمانان الله په دې مامور کړي دي چې د وخت په مروجه مهمو وسایلو ځان سمبال کړي ، څو دخپل مال ،ځان ، او ناموس ساتنه پرې وکړی . نو دهمدې موخې د لاس ته راوړلو په خاطر مو د دې موضوع لیکلو ته کلکه ملا وتړله ، علمي او اساسي کار مو پرې وکړ ، څومو هغه ملي ، مسلکي او علمي مسولیت اداکړی وي  چې د لوړ زدهکړو په ډګر کې یې موږ لرو .او بل دا چې  زموږ د هېواد بچیان هم د نړۍ دنورو انسانانو یه شان د اړیکو په اړه کره او پوره معلومات ولري .

**موخه :**

څرنګه چې انسانان اړیکو ته هر اړخیز او جدي ضرورت لري ، پرته له اړیکو یې ژوند کاملا نیمګړی دی ، نو له همدې کبله دژورنالیزم اوعامه اړیکو د پوهنځي
محصلانو او مینه والو ته لازمي او ضروري ده چې د روابطو په اړه پوره ، علمي ، اساسي او بکر معلومات ولري.څو د ښو اړیکو په لرلو سره خپلې ځوریدلې ټولنې ته داسې چوپړ وکړي چې په علمي او عادي ډګرکې د هر افغان د درد دوا وګرځي .
بل داچې له دې مخکې موږ د هیواد په کچه د اړیکو په برخه کې داسې علمي اثر نه درلود چې په دې ډګرکې زموږ اساسی او علمي ضرورت پوره کړای شي ، نو د ډله ییزو رسنیو کارکوونکو او محصلانو ته لازم دی چې په دې اړه پوره او کره معلومات ولري څو د ژوند په ټولو چارو کې هغه څه چې زموږ په عادي او سیاسي ژوند کې ارزښت لري سم وکارول شي .
بل داچې د ژورنالیزم او عامه اړیکو محصلان د خپلو چارو په جریان کې تل له اړیکو کار اخلي ( خبر ، مرکه ، رپوټ ، د ټولنو ،موسسو ، ادارو ، کمپنیو او وګړو تر منځ روابط )  نو لازم دی چې د ا ړیکو له ټولو اصولو څخه پوره خبرتیا او د سرته رسولو لپاره یې وړتیا ولري، او دټولنې ټولې غوښتنې ، دودونه ، دستور ، فرهنګ ژبې او ټولنیزو معلوماتو په اړه یې پوره ځان پوهه ، څو دکار په دوران کې له کړاوونو

سره مخ نه شي او پیغام په داسې ډول ولیږي چې دقبلیدو امکان یې زیات او د ردیدو امکان یې کم وي .

**د موضوع ارزښت :**

څرنگه چې انساني ژوند بر روابطو ولاړ دی او له اړیکو پرته د ژوند دوام هیڅ امکان نه لري نو دژورنالیزم او عامه اړیکو محصلانو ، استادانو، او مینه والو ته لازم دی چې د اړیکو په اړه هر اړخیز علمي ،اساسي او مسلکي معلومات ولري څو وکولی شي په مناسبه ، وړ او مسلکي ډول له مختلفو ټولنو،اشخاصو ، ادارو او گروپونو سره په داسې توگه اړیکې وساتي چې نه یوازې یو له بل سره پوهه شي بلکه را جذب یې کړي ، را وې سپړي ، او داسې رازو نیاز سره شریک کړي چې ټول معلومات ترې لاس ته راوړي .

څرنگه چې انسان یو ټولنیز مخلوق دی هر څه په ټولنه کې ، د ټولنې د بهبود لپاره تر سره کوي ، او رسنۍ بیا شپه او ورځ د ټولنې په چوپړ کې لگیا دي چې د ټولنې په سیاسي، ټولنیز، اقتصادي ،کلتوري ،او هر اړخیزه برخه کې په زړه پورې نه هیریدونکی رول لری ، چې له اغیز او کردار څخه یې سترگې نه شو پټولی نو لازم دی چې د د روابطو په اړه ژور علمي ، او اساسي معلومات ولرو څو وکولی شو د ټولنې له ټولو پرگنو ، قشرونو ، نژادونو او ډلو سره د ښو او موثرو اړیکو د نیولو او ټینگولو په اصولو ځان پوهه کړو ، یو بل ته خپل پیغامونه ورسوو ، غبرگونونه واخلو او بالاخره د ټولو مسایلو په اړه مناسب افهام او تفهیم را منځ ته کړو د همدې ارزښت او اړتیا له کبله دا مضمون د ژورنالیزم او عامه اړیکو په کاریکولم کې ځای پر ځای شوی ، ځکه انساني ژوند بې اړیکو هیڅ دوام نه شی لرلی که اړیکې نه وي هیڅ نشته نو د ژورنالیزم او عامه اړیکو محصلان ، استادان او مینه وال مجبور دي چې له دې علمي اثر څخه گټه واخلي .

**هغه علمي اثار چې استفاده ترې شوي:**

هغه اثار چې په دې برخه کې ما ورڅخه ګټه اخيستې،اکثريت يې له ۲۰۰٦ميلادي کال څخه تر ۲۰۱۷ چاپ او ليکل شوې دي،د ګاونډيو هيوادونو په ټولو پوهنتونو او کالجونوکې د لسانس او ماسټرې د دورې لپاره تدريس کيږي،ليکوالان يې د پوهنتونونو او کالجونود ژورناليزم د پوهنځيو استادان او درسنيو کارکوونکي دي د دوی دنظرياتو او معلوماتو له کبله دغه اثرد ژورناليزم د نړيوال معيار مطابق ليکل شوی،ډيری ليکوالان يې په نړيوالو او ملي مطبوعاتي ادارو کې کار کوي او مشهور خلک دي،چې د اثر په پای کې د ماخذ په توګه ذکر شوي دي.

**د څيړنې تګلاره:**

څرنګه چې د ارتباط موضوع ډيره پراخه ده د نړۍ په مختلفو مشهورو ټکنالوژيکي ژبو ليکنې پرې شوي دي په ځانګړي ډول په انګليسي او اردو ژبو کې په دې اړوند په زړه پورې مهم علمي اثار ليکل شوي دي،نو ماهم د انګليسي او اردو ژبې د پوهانو له اثارو او کتابونو څخه ګټه اخيستې،چې خپل هيواد کې د ژورناليزم مهم ستوري ګڼل کيږي او د ارتباطاتو د علم مشهور خلک دي. ما ددې پوهانو کتابونه په دقيقه توګه مطالعه کړل د هرې موضوع په هکله مې د ټولو عالمانو نظريات ولوستل له لوستلو وروسته مې موضوع پخپل ذهن کې خلاصه کړي او د اوسنيو عصري غوښتنو مطابق مې په خپلو کلماتو او الفاظو داسې ليکلي چې د وخت غوښتنې پوره کولې شي او که کوم عالم د نورو په نسبت يوه موضوع کې ابتکار کړي وي،ما د هغه نظر ته ترجيح ورکړې د متن په پای کې مې د ماخذ شميره او صفحې نمبر ورکړی دی لکه (۴،۷۱،۸۲)

او همدارنګه کله چې د عالم نظر ته ضرورت پيښ شوي نو کټ مټ مې د هغه نظر راخيستې د متن په پای کې مې د عالم نوم او د اثر د چاپ کال ليکلی دی لکه :

( رانا سيف الرحمن(۲۰۰۹)

همدارنگه مې په څېړنه کې د مختلفو پوهانو نظرونه سره مناقشه کړي دي،هغه نظر ته مې ترجيح ورکړې،چې په موضوع کې یې نوښت کړی او له نن وخت سره سر خوري او هم مې د هيواد د مختلفو پوهنتونو د استادانو له ليکچر نوټونو او مختلفو انټرنيټ سايټونو څخه استفاده کړي ده.
د يادولو وړ ده،چې د ارتباط د مختلفو اړخونو په هکله مې د قرآن عظيم الشان له ايتونو څخه استفاده کړې ده،چې دا کار په اوسني وخت کې يو نوښت دی او له دې مخکې ډېرو کمو خلکو دې موضوع ته اشاره کړي ولې متاسفانه د هيواد د ژورناليزم برخه د ځينو مسلکي پوهانو د نه توجه له کبله له دې اړخه تشه پاتې ده ، حال دا چې قرانکريم  د انساني ژوند د ټولو ضرورتونو د پوره کولو لپاره ټولې لارې او چارې په ګوته کړي دي او يو کامل کتاب دی .
همدارنګه مې د پيغمبر(ص) د مختلفو احاديثو څخه د موضوع مطابق  ګټه اخيستې او هم مې د موضوع په هکله د لارښود استاد او د پوهنځي له نورو استادانو څخه پوښتنې کړي دي او د هغوی غوره نظر ته مې ترجيح ورکړي ده.
لازم دی يادونه وکړم،چې د وخت او زمان د ضرورتونو او غوښتنو د پوره کولو لپاره ما په يوه موضوع ۱۸ علمي اثارو په دقيق ډول مطالعه کړي او بيا مې هغه څه راخيستي چې ددې پيرۍ انساني غوښتنې پوره کولې شي دبيلګې په ډول تر ۲۰۰۷ کال پورې دژورناليزم پوهانو په نړۍ کې ژبې په ۵ ډلو ويشلي وې چې عبارت دي له عامه ژبه،علمي ژبه ، مطبوعاتي ژبه او ساينسي ژبه  خو په ۲۰۰۸ او ۲۰۰۹ کلونو کې دې ارتباط پوهانو يوه بله ژبه هم کشف کړه او هغه يې د ټکنالوژي ژبې په نوم ونوموله او دا هغه ژبه ده چې په ځانګړي ډول په انټرنيټ کې استعماليږي ځانګړې صفتونه لري دا  ، او دې ورته نوښت ،چې کوم عالم کړې ما کټ مټ د هغه نظر راخيستې او په اخر کې مې د عالم نوم اود  اثر د چاپ کال ليکلی دی .

او همدارنگه د موضوع د ښه وضاحت لپاره د مختلفو راډیوگانو،تلویزیونونو او اشخاصو څخه مختلف معلومات راټول کړي او په اثر کې مې ځای کړي دي او په پای کې مې ددې منبع نوم او تاریخ ليکلی دی لکه (بي بي سي،۱۳۸۹،۲،۱۵).
څرنگه چې د ارتباطاتو علمي بهير ورځ په ورځ پرمختگ کوي، دنړۍ مختلف پوهان په دې هکله نوي کشفيات کوي علمي اثار ليکي موږ هم بايد د لا نورو معلوماتو په لټه کې شو او يه شته معلوماتو بسنه ونه کړو هڅه وکړو چې د نړۍ د علم او پرمختگ له کاروان سره گام اخلو.
سره له دې ډيرو معلوماتو او هڅو مونږ نه شو کولای،چې د موضوع په اړوند پوره او نوي معلومات راټول کړو ځکه زموږ علمي او مسلکي تجربه د نړۍ او هيواد د پوهانو په نسبت ډيره کمه ده،څرنگه چې لازم دي په هغه ډول معلومات نه شو راټولولې ځکه د نورو پوهانو تجربه زموږ عمر دی،که څه غلطي اوسهوه راڅخه شوې وي ما وبخښې ځکه بخښنه د ځواکمنو کار دی او پوره علم يوازې الله تعالی لره دی.

په اسلامي او ملي مينه

پوهندوی محمدخان نيازی

شيخ زايد پوهنتون

دعامه اړيکو څانگه

خوست

بِسْمِ اللهِ الرَحمْنِ الَرحيم

# لومړی فصل

## ارتباط (اړیکه) (Communication)

دارتباط (اړیکه) یاابلاغ د لفظ څېړنه.

اْلْحمْدُ اللهِ و كَفى وَسَلامَ عَلَى عِبَادِهِ الذِيْنَ صْطَفى لاسَيمٌاَعَلى سَيدٌى الورى

ارتباط د افتعال په وزن عربي کلمه ده مصدر يې رَبْط دی، چې په پښتو ژبه کې د اړیکه، اړیکه نیول، په دری ژبه کې د پیوند دادن، پیوستن، پیوستگي، بستگي اوبستن مانا ورکوي. (9: 3، 7)

ارتباط د عربي ژبې د ربط له کلمې څخه اخیستل شوی، چې د تړلو، پیوند کولو مانا ورکوي په دری ژبه کې هم راځي دا کلمه په پښتو ژبه کې هم معمول ده، په پښتو ژبه کې يې مترادفه کلمه اړیکه په انګلیسي ژبه کې يې مترادفه کلمه (Communication) ده.

په پښتو ژبه کې د اړیکه کلمه د تړاو، پیوستون، نښتون او پیوند په مانا استعمالیږي (18: 14، 20).

د اردو ژبې د ابلاغ کلمه لکه مخکې چې وویل شول د عربي ژبې د بلغ له کلمې څخه اخیستل شوې، چې د تبلیغ، وعظ، نصیحت، پوهولو اورسولو مانا ورکوي، چې دانګریزي ژبې د Communicate او Communication له الفاظو سره هم مانا ده، د انګرېزي ژبې ذکر شوی لفظ دلاتیني ژبې د Commune یا Communicare څخه اخیستل شوی، چې د اشتراك پید اکولو یا د برخې پیدا کولو او لرلو مانا ورکوي (20: 2، 3).

د اردو ژبې تکړه لیکوال چودهري شهزاد احمد شاد لیکي: د ابلاغ لفظ دبلغ اوتبلیغ له کلمو څخه اخیستل شوی، چې د رسولو، پوهېدلو او د پیغام خپرولو مانا ورکوي،

نو له دې کبله له يو انسان څخه بل انسان ته د نظرياتو، عقايدو اواحساساتو رسولو ته ابلاغ (ارتباط)يا اړيکې وايي. (11: 2، 3).

د پورتنيو پوهانو له نظرياتو څخه داسې نتيجې ته رسيږو، چې د دري ژبې د ارتباط، د پښتو ژبې د اړيکې، د اردو او عربي ژبې دابلاغ او د انګرېزي ژبې د Communication کلمې سره هم مانا دي، چې د رسولو ټينګولو، پوهولو، معلومات او اطلاعاتو د ورکولو مانا ورکوي. ددې لپاره چې د موضوع تل ته ورسېږو، نو د ارتباط (اړيکې) د کلمې تعريف ته راځو او دمختلفو پوهانو له نظره يې تعريفوو:

د اړيکو پيژندنه د مختلفو پوهانو له نظره

**By saddam Hussain:** communication is the exchange of Information and Ideas with the use Of Gestures Postures, sings, symbols, Impressions and expression.

**ډاکټرمهدي حسن ليکي:** هغه عمل، چې د هغه په واسطه احساسات (Feelings)، خيالات (Ideas) له يو شخص (sender) څخه بل وګړي (Receiver) ته انتقال شي ارتباط (ابلاغ) بلل کيږي. (17: 18، 19).

**Byprofessor Talal Hassan:** Communication is actually a Proces of sharing ideas and emotions with others people, which work like a drop of water in a desert without communication is no life at all.

### امريکايي ژورناليست (والټر) وايي:

دهر انسان په ذهن کې خيالونه او سوچونه په تصويري شکل موجود وي، کله چې ديوه شخص د ذهن تصوير د بل شخص د ذهن له تصوير سره همغږی کيږي،نو د اړيکو عمل پيدا کيږي، چې دې ته ارتباط (اړيکه) وايي. (19: 2، 3).

**جارج اي مولر:** په خپل اثر (Mass Communication) کې ليکي: اطلاعات او معلومات يا پيغام انتقال له يو ځای څخه بل ځای ته له ارتباط څخه عبارت ده.

**By napoleon**: The strong man is the one who is able to intercept at will the communication between the senses and the mand.

**رویل ایل هاوي وايي:**

خپل افکار، نظريات اواحساسات نورو ته په داسې طريقه رسول چې مقابل لورى پرې پوه شي. ارتباط بلل کيږي. (۵: ٦).

**جيمز سي** : د يو يا د څو کسانو تر منځ پوهولو او راپوهولو ته ارتباط وايي.

واك جي فادر وايي: په اړيکو کې د پيغام ورکولو او پيغام اخېستلو عمل مهم دی، خو اصلي خبره دا ده، چې له پيغام څخه پيغام اخيستونکي اصلي مطلب اخيستى دی او که نه. (4: 1، 3).

ايډور ډايل برنك: په يوه ټولنه کې د اوسېدونکو تر منځ بحث، اړيکو،اشارو اوعلامو ته ارتباط وايي (17: 20، 19).

لياقت علي ملك:

د انسان د جذبو، احساساتو، اطلاعاتو، معلوماتو اوافکارو اظهارول د علامو، اشارو او ژبې په وسيله اړيکې بلل کيږي.

ډاکټر شفيق جالندهري وايي:

زموږ هغه عمل ، چې د هغه په وسيله احساسات، افکار، نظريات له يوې منبع څخه بلې مرجع ته انتقاليږي اړيکې بلل کيږي.

ويبسټرز نيوکالجيت ډکشنري: (Webster’s New Collegiate Dictionary)

يې داسې تعريفوي: ارتباط هغه عمل دی، چې دهغه په وسيله د وګړو په منځ کې اطلاعات، معلومات اوعقايد د مشترکه اشارو او علامو په وسيله د تبادلې او تکرار وړ وګرځي. (5: 3، 13).

محمد اقبال انجم :

د انسـانانو تر منځ ، د احسـاسـاتو، خيالونو، نظريو، او مافي الضـمير اظهار د وينا، علامو، اشارو په وسيله له ارتباط څخه عبارت دی. (16: 19).

د اکسفورډ ډکشنري مؤلفين وايي:علم، نظريات، پوهه، زده کړه او د معلوماتو تبادله د وينا ، اشارو او نښو له لارې له اړيکو څخه عبارت دی. (2: 14، 6).

د New World Dictionary of American Language مؤلفين وايي: هر پيغام، اشـاره، معلومات اواطلاعات د خبرو، قلم، کتاب اواشـارو له لارې، چې مقابل لورى پرې پوه شي اوپه خپل منځ کې سره تبادله کړي له ارتباط څخه عبارت دی.

**محمديوسـف ميرزا:** د دوو کسانو تر منځ د خبرو کولو د پوهولو او راپوهولو عمل ته ارتباط وايي: که دا پوهېدنه د وينا له مخې وي او که د تصـوير، اشـارو اويا نورو وســيلو پـه ذريعـه، خو په دې شرط چې په ښــه طريقه سره د دوی تر منځ خبرې تبادله شي. (16: 19، 20).

**ډاکټرمســکين علي حجازي:** د اطلاعاتو او معلوماتو ورکولو او اخيســتلو ته ارتباط وايي.

**گربنر:** Social Interaction through Massage is Called Communication (16: 18).

**چارلس کولي:** Charles Colley: هغه نظام، چې دهغه په وسـيله انساني رابطې ترل کيږي او پرمختگ کوي او ارتباط بلل کيږي. (15: 3).

**والټرليپمين** (Walter lip man) هر انســان په ذهن کې مختلف افکار او تصــاوير لري کله چې د يو کس د ذهن تصــاوير او افکار د بل کس د ذهن له تصــويرنو سره همغږي شي،نو د ارتبـاط عمـل مکمـل کيږي، پـه نتيجـه کې پيغـام خپـل هدف ته رسيږي، چې همدغه عمل ارتباط بلل کيږي. (20: 2، 3).

پروفیســورمحمد اقبال انجم: مختلف اطلاعات، معلومات، افکار، احســاســات او نظریات د علامو او اشارو په وسیله چې انتقالیږي اړیکې بلل کیږي. (15: 4).

د Beginning Dictionary مؤلفین لیکي:

1- Giving Information or News! People who are deaf of to use sign languages as a means of.

2- The Information or News given latter or massage which gives information or News, Two Communications came in time to change all my plans. (18: 6)

**بیرلیســن ســټیز وایي :** په ابتکاري ډول د الفاظو، اشــارو، تصــویرونو او ګراف په وسیله، د اطلاعاتو، نظریاتو، او احساساتو انتقال له اړیکو څخه عبارت دی.

**د ډي جي پال له نظره:** ارتباط هغه عمل دی، چې دهغه په وسیله زموږ نظریات، افکار، احساسات، تاثیرات نورو ته په ښه طریقه ورسیږي اوپیغام حاصل کړي. (16: 19، 20).

**د ظهورالحسن تیموري له قوله:** ارتباط په حقیقت کې د افهام اوتفهیم د پیدا کېدو (رامنځته کېدو) نوم دی. (16: 5، 6).

**د لانګ من ماډرن انګلش ډکشــنري په وینا:** د معلوماتو اواطلاعاتو اخیســتلو او ورکولو یا د معلوماتو اواطلاعاتو تبادلې ته اړیکې وایي. (14: 5، 6).

د What is Communication مصــنف هاین ســیکر وایي: د اطلاعاتو، معلوماتو او نظریـاتو انتقـال لـه یو ځـای څخـه بل ځای ته یا له یو فرد څخه بل فرد ته له ارتباط څخه عبارت دی. (16: 9، 8).

## د اړیکو ارزښت:

انســان د الله ج یو ټولنیز مخلوق دی، چې تل اجتماعي ژوند خوښــوي او همېش دځان ښـېګړه د بل د ژوند په بقا کې ګوري او کله کله داسې هم پېښـیږي، چې یو

انســـان د بـل انســـان د ژوند د بقا  لپاره ځان قرکړي ، مختلف کړاوونه ګالي، څو وکولای شي خپل بل ملګري ته يې خير ورسيږي  او د پيغمبر(ص) ددې قول منونکي شي، چې (خَيرٌ النَـاسِ مَنْ يَفَعُ النَـاس)  بهتر د خلکوهغه څوك دی، چې خلکو ته يې نفع ورســـيږي. الله په دې هکله فرمايي :ياايهاالذين امنوالصـــبروا صـــابروا ورابطو والتقوالله لعلکم تفلحون.

 اې مومنانو!پخپله  صـبر وکړی  نوروته په صبر توصيه وکړی او يوله  بل سره رابطې وساتی له خدايه ويره وکړی شايد چې کامياب شی .

د ذکرشـــوي ايت شريف څخه داســـې معلوميږي چې انســـاني ژوند په اړيکو پورې تړاولري  له رابطو پرته ژوند نيمګړی ،او له ناکاميو سره مخ دی ، ن لنډه داچې پرته لـه ټولنې او اړيکو   ژونـد نـاممکن دی تـل بـايـد پـه ټولنـه کې ژوند وکړي، له خپلو خپلوانو ملګرو، همزولو، هم فکره او د ټولنې لـه ټولو قشرـــونو سره علاوه لـه ټولو ژونـديو موجوداتو او کـائنـاتو سره اړيکې ولري او بـايـد پـه خپـل ځـان کې داســـې ځـانګړتياوې پيدا کړي، چې د ټولنې نور وګړي او موجودات په ځان راټول اوتر منځ يې رابطه ډېره قوي اوعالي وي. لوی څښـــتن ج په دې هکله فرمايي: (**وَمَنْ أَحْسَـــنُ قَوْلاً مِّمَّن دَعَا إِلَى اللَّهِ وَعَمِلَ صَالِحًا وَقَالَ إِنَّنِي مِنَ الْمُسْلِمِينَ 33**)

 ژباړه: او له هغه بنده څخه ښه خبر د چا کېدای شي، چې خدای تعالی لور ته بلنه کوي او وايي، چې زه خپل خدای ته تسليم يم .

همـدارنګـه اللـه ج فرمـايي: (**ادْعُ إِلِى سَـــبِيلِ رَبِّكَ بِالْحِكْمَةِ وَالْمَوْعِظَةِ الْحَسَـــنَةِ وَجَادِلْهُم بِالَّتِي هِيَ أَحْسَـنُ**) ژباړه: رابوله خلك  د خدای تعالی لارې ته په حکمت، نيکه موعظه او بهتره طريقه سره (النحل 144) ياد ولرئ چې دا ذکرشـوي صـفتونه فقط مســـلمان ته الله ج ور په    برخه کړي  چې  د  خدای جېر ځمکه د خدای ج قانون او اصول غواړي او عمل هم پرې کوي.

انسان د خپل تجسس او پلټنې او د نورو د خير لپاره د ځمکې، سر ټول قدم په قدم وکوت، مگر بيا يې هم زړه صبر ونه کړ او دا دی نن يې فضاء ته ملا تړلي او غواړي چې د خپلو گټو اوغوښـتنو د پوره کولو په خاطر فضـاء د ځان لپاره تسـخير کړي، چې خپلې غوښـتنې پوره او مرام ته ورسيږي. پورتني ټول کارونه د ارتباط په وسيله سرته رسيږي، له زيار او اړيکو پرته هيڅ امکان نه لري، چې انسان دې خپل اهداف لاس ته راړي. نو لازمه ده، چې د ارتباط په ارزښـت باندې په تفصـيل سره وغږېږو، چې وکولای شو په دې هکله په زړه پورې معلومات حاصل کړو.

د يو ويشتمې پيړۍ

## د ارتباط پيل (Origin of Communication):

د ارتباط د پيل په اړوند مهم اسناد دالله تعالی کتاب (قرآن عظيم الشان) دی، چې تر ټولو اسنادو مهم او د اعتبار وړ دی، چې بايد هر انسان خصوصاً مسلمان يې پرته له کوم شك او شبهې څخه ومني.

پاك خدای ج په خپل کتاب (قرآن عظيم الشان) کې فرمايي: (**وَإِذْ قَالَ رَبُّكَ لِلْمَلاَئِكَةِ إِنِّي جَاعِلٌ فِي الأَرْضِ خَلِيفَةً**) ژباړه: او هغه وخت (خپل امت ته وریاد کړه) چې کله سـتا رب ملايکو تـه وويل چې يقيناً زه په ځمکه کې د يوه خليفه پيداکوونکی يم. سورة بقره (30)

وروسـته له ملايکو څخه الله ج د لومړي انسـان (بابا ادم عليه السـلام) سره د خپلو اسـتازيو (ملايکو) په وسـيله ارتباط ونيو او هغه څه چې انسان يې تر ابده زده کوي، الله ج ادم عليه السـلام ته وښـودل. الله ج ادم عليه السـلام سره دارتباط په اړه فرمايي: (**وَعَلَّمَ آدَمَ الأَسْمَاء**) او بيا الله ج ادم عليه السلام ته ټول نومونه وښودل. بيا يې د نومونو والا شيان پرښتو ته (په بلاکيفه توگه) وړاندې کړل.

نو اللـه ج ورتـه وويـل، چې ددغو شـيـانو پـه نومونو باندې مونږ ته خبر راکړئ که چېرې تاسو (په خپل تعجيب کولو کې)رښتيني ياست. بقره (31.)

د پورتنیو ایتونو خلاصــه: دغه تعلیم او ښوونه تکویني وه، چې خاصو لغاتو او کلماتو تــه یې ضرورت نــه درلود، بلکې الله ج په حضرـــت ادم علیه الســـلام کې داســـې اســتعداد کېښــود، چې د قیامت تر ورځې پورې به هغه ضرورتونه او غوښــتنې چې انســـانـان یې د ضرورت په بنا پیداکوي او یا یي لري پوره اوله نورو انســـانان سره خبرې پرې کوي او پــه مختلفو کلماتو اوالفـاظو بــه یې څرګنــدولی شي. همــدې مضمون ته الله ج اشاره کړې ده، چې (علمه البیان) (سورة رحمن، 4).

ژباړه: الله ج انســان ته (په لیك لوســت سره) بیان ښودلی دی چې. د ما فی الضمیر څرګندونه وکړي، همدا رنګه الله ج دغه تکویني زده کړه هر ژوندي شي ته ښښـــلې ده، الله ج فرمایي (**قَالَ رَبُّنَا الَّذِي أَعْطَى كُلَّ شَيْءٍ خَلْقَهُ ثُمَّ هَدَى 50**) طه.

ژباړه: زموږ رب هغه ذات دی چې هر شي ته یې مناسب شکل ورکړی دی او بیا یې ورته ښـــودنه کړې ده. او هغه ژبه چې الله ج په دغه وخت کې له ملایکو سره پرې ارتبـاط نیولی، یوازې الله ج ته معلومه ده او بس او که چېرته یې موږ ته ګټه لرلی، نو الله ج به حتماً انسانانو ته په صراحت سره ویلي وو. (13: 20).

## د ژوند مهم دلیل (Proof of life):

انســـان د خــدای ج اشرف، بهتر او ټولنیز مخلوق دی، چې پرتــه لــه اجتماع او پــه اجتماع کې لــه ارتبـاط پرته ژوند نه شي کولای، بلکې خدای ج طبیعتاً داســـې پیدا کړی، چې پرته له خپلو هم مثلو ژوند نه شي کولای. په دې هکله علماء په تفاسیرو کې لیکي:

کله چې الله ج ادم علیه السلام پیدا کړ او روح یې پکې واچاوه، نو ادم علیه السلام چې ژوندی شـو ډېر ناقراره او لالهانده و، نو الله ج بیرته دی بې هوشه کړ او دده د استقرار لپاره یې دده له چپې پوښتۍ څخه

بي بي حوا رضي الله تعالی عنه پیدا کړه. څو ادم علیه السلام ورسره سکوت اختیار کړي. په دې هکله فرمایي (**وَمِنْ آيَاتِهِ أَنْ خَلَقَ لَكُم مِّنْ أَنفُسِـكُمْ أَزْوَاجًا لِّتَسْـكُنُوا**

**إِلَيْهَا)** ژباړه: ای انسانانو! ما ستاسو له نفسونو (چېپ پوښتی.) څخه ستاسو لپاره ښځې پیدا کړې، چې تاسو له هغوی سره سکونت اختیار کړئ.

له پورته ذکر شوي ایت شریف څخه داسې معلومېږي، چې انسان د خدای ج یو ټولنیز مخلوق او له ارتباط پرته هیڅ ژوند نه شي کولای، نو بناً ویلی شو، چې انسان او حتی حیوان د خپلو ضرورتونو د پوره کولو لپاره په مختلفو طریقو (اوازو، اشارو اوعلامو) باندې له نورو هم نوعو ژوندي شیانو سره اړیکې ساتي، چې په اسانۍ سره ژوند پرې کولی شي.

نو بناً ادعا کولی شو، چې اړیکې د انساني ژوند د بقا یو مهم دلیل دی، ځکه چې انسان د خپل ژوند ټول ضروریات یو له بل څخه د اړیکو په وسیله پوره کوي حتی کورني اهلي حیوانات هم د خپل ضرورت وړ شیان له انسان څخه د مختلفو اوازونو په کولو سره پوره کوي، چې خپل څښتن پوه کړي، چې دغه اهلي حیوان څه ضرورت لري. مثلاً: کله چې غوا وږې یا تږې شي یا یې د لوشلو وخت شي، نو د اوازونو (رمباړو) په وهلو سره خپل څښتن خبروي، چې ددې حیوان (غوا) ضرورت پوره کړي.

دافکارو اونظریاتو تبادله ( Transmission of Views and Ideas):

د ارتباط په وسیله انسان خپل فکر، سوچ، ذهني غوښتنې اوتمایلات نورو انسانانو ته انتقالوي اوغواړي، چې خپل راز، غوښتنې، اوپټ احساسات خپل ملګري سره شریك کړي، په دې هکله له هغه څخه مشورې غواړي، د مشکل د حل لارې ورته په ګوته کړي، همدارنګه هغه څه چې له ده سره دي، بل انسان ته انتقال کړي، د موضوع په هکله دهغه نظر وپوښتی، د هغه مشورو ته غوږ ونیسي او په ډېر تدبیر سره خپل هدف لاس ته راوړي، ځکه چې د یو فکر او ډیرو فکرونو او نظرونو تر منځ ډېر توپیر وي. (7: 20).

د انساني نړۍ لارښود حضرت محمد صلی الله علیه وسلم په خپل ژوند کې زیاتره مسایل او له اصحابو سره د افکارو، نظریو او مشورو په کولو سره ترسره کړي دي دي او په دې هکله یې هر وخت د الله ج (وَ شَاوِرهَمٌ فیِ الامرِ) تابعداري کړې ده.
په اوسنۍ عصري نړۍ کې وګورئ، ټول هېوادونه، د مختلفو مشکلاتو د حل لپاره یا د نوي کارونو دپلانونو د سرته رسولو لپاره بلاکونه جوړوي، په مختلفو ځایونو کې مختلف النوعه مصرفونه کوي، شپې ورځې اومیاشتې تېروي، د خپلو پلانونو دعملي کولو لپاره له ډېرو مشورو، دافکارو او نظریاتو له تبادلې څخه وروسته د پلان د عملي کولو لپاره تصمیم نیسي او عملاً په کار شروع کوي، نو ځکه خو یې پلانونه په اسانۍ سره عملي کیږي او د نړۍ په ټولو کونجونو کې د خپلو ګټو دساتلو لپاره مشاورین ټاکي، د راز د شریك کولو لپاره له ارتباطي عصري وسایلو کار اخلي او په ځودقیقو کې تفاهم ته سره رسیږي، چې دا مهم کار هم د اړیکو په وسیله سرته رسیږي او له اړیکو پرته هیڅ امکان نه لري (17: 21).

## د اطلاعاتو او معلوماتو تبادله:

انسان له ماشومتوب نه تر مرګه پورې د خپلو غوښتنو دپوره کولو لپاره هڅې کوي تل په دې بوخت وي چې څه لاس ته راوړي ، له خپل چاپیریال څخه دمعلوماتو د راټولو او لاس ته راوړلو لباره هم زیار باسي تل په دې لټه کې وي، چې د ځان د پوهې لپاره نوي شیان زده کړي، نورو ته یې وښیي او همدا رنګه د مختلفو پروګرامونو د سرته رسولو او د معلوماتو د راغونډولو لپاره له نورو انسانانو سره راز شریك کړي، چې ي خپله پوهه یې زیاته شي او هم د بل چا د پوهې سبب وګرځي همدغه سبب دی چې د لرغونې زمانې دا نسانانو له کړنو خبریږو د هغو نیک کارونه ستایو او له بدو یې نفرت لرو او د ښو کارونو دتر لاسه کولو لپاره دپوهې لار خپلوو .

د انسـاني نړۍ ستر لارښود حضرت محمدصلی الله علیه وسلم څه ښه فرمايي: علم زده کړئ له زانګو نه تر ګوره پورې) اوهمدا رنګه فرمايي .
(ورسـوئ زما څخه که چېرې  یو ایت هم وي) او همدا رنګه خدای ج د محمدصـلی الله علیه وسلم امت ته فرمايي: (تاسو له خلکو (نورو امتونو څخه) د لا ښو امتونو په حیث غوره شوي یاست، چې خلکو ته په نېکو کارونو امر وکړی او له بدو کارونو يې منع کړی. او هم الله ج امر  کوي چې
(**فَاسْـــأَلُواْ أَهْلَ الذِّكْرِ إِن كُنتُمْ لاَ تَعْلَمُونَ**) ژباړه:پوښـــتنه وکړئ د علم له خاوندانو څخه که چېرې ته نه پوهېږئ).
فلهذا نو ویلی شـو چې د اسـلامي ټولنې اوسېدونکي مامور دي، چې  خپله هم پوهه زده کړي او بیا يې نورو ته وښــيي، چې د نورو انســانانو دخير او ښــېګڼې ســبب وګرځي.
نو همدغه زده کړه او ښــوونه ده چې دانســانانو تر منځ مختلف النوع معلومات او تجربې تبادله کوي، چې دا هم دارتباط په وسیله  سرته رسيږي که انسانان یو له بل سره اړيکې ونه لري نو دژوند دا څپانده اراده به د تل لپاره  ولاړه وه .

## د تجربو اومشـــاهدو تبـادلـه ( Exchange of Experience and Observation)

د  انســان ژوند له مختلفو تجربو څخه ترکيب شـوی، که چېرې د اړيکو (ارتباطاتو) سـلسله نه وای، نو د یو نسل د تجربو انتقال بل نسل ته ناممکن دی، موږ د ورځني ژونـد مختلفې تجربې، کتنې او مشـــاهدې  د ارتباط په وســـيله  یو بل ته انتقالوو. وګورئ د نړۍ مهم ســـاينسيــ او نوي تکنالوژيکي معلومات، همدا راز د ژوند مهم وســايل له نن څخه څو ســوه کاله مخکې نه وو که وو هم ډېر په ابتدايي حالت کې وو، نو ددغو اختراعـاتو مـاهرينو خپلې تجربې نورو ملګرو تـه انتقال کړې، چې ورو، ورو يې پرمختګ وکړ له نن څخه دوه لســيزې  مخکې فســبوک منځ ته راغی او په

نړۍ کې په بيلونو نو انســانان   کاروي چې يوازې په افغانســتان کې يې  څو ميلونه خلک ترې ګټه اخلي  چې دا ديو امريکايی محصــل دزيار هڅه وه چې ټوله نړۍ يې سره مخـا مخ کړه  ، ســـړی کولی شي و نړۍ لهر ګوټ څخـه چې زړه يې وغواړي او کوم تخنيکي ممانعت هم  نه وي اړيکې نيولی سي ، دا د هغّه فســبوک کوړونکي د هڅو بايله ده  چې له کبله يی ټول نړيوال سره  اشنا کړل دا  د هغه  تجربو زحمتونو او کوښـښـونو نتيجه ده ، چې موږ په څو ثانيو کې د ارتباطي وسـايلو په وسيله خپل مشکلات حل کولی شو، چې همدغه کار هم د ارتباط په وسيله سره سرته رسيږي او پرته له ارتباط هيڅ امکان نه لري.

اوســـني عادي ژوند کې که وړوکی ماشــوم د اور يا اوبو خوا ته ځي د ســوځېدو او ډوبېدو خطر يې وي، نو موږ هغه دغږ يا ځانګړې اشارې په وسيله منع کوو، چې ونه سوزي يا ډوب نه شي. دغه ساده او بسيط کار ته که ځير شو، بيا هم ادعا کوو، چې د تجربو او مشاهدو انتقال نورو ته د ارتباط په وسيله ممکن دی. (10: 2، 3)

## اړيکې  د  انســـانانو تر منځ د پيوســـتون وســـيله (Communication link of Human Beings)

څرنګـه، چې اړيکې د انســـان لپاره ګټور،اطلاعات، معلومات يا پيغامونه له يو ځای څخه بل ځای ته انتقالوي يا د مختلفو قومونو تر منځ تعلقات او روابط، معلوماتو او اطلاعاتو تبادل، له يوې سـيمې څخه بلې سـيمې ته يا له يو نسل څخه بل نسل ته د دودونو انتقـالول، دعلمونو لېږدول، چې دغه عمل په خپله او په انســـاني ټولنه کې مهم رول ادا کوي. (7: 20)

يا په بل عبارت: انسـاني رابطې او راشــه درشــه د ارتباط له لارې منځ ته راځي، کله چې له چا سره مخامخ کېږو له هغه سره ســلام کلام هم د  ارتباط برکت دی، همدا رنګـه که د انټرنيټ له لارې چا سره تحريري رابطه وکړو هغه هم ارتباط او ارتباطي وسايلو برکت دی، چې وکولای شو خپل افکار ، رازونه، نظريات او معلومات له خپلو

هم نوعو (انسـانانو) سره شريك کړو، د هغوی له حاله خبر شو، د خپل ژونداو حالاتو په اړوند معلوما ورکړو، چې دا ټول کارونه د ارتباط په وســيله سرته رســيږي، نو بناً ادعا کولی شو چې: ارتباط په انساني ژوند کې يوه بهتره او مهمه وسيله ده. (19: 31).

## نړۍ د يو کلي پـه شـــان ( World as Global Village)

د نويو عصرـي تکنالوژيکي وسـايلو په وسـيله ټوله نړۍ د يو ورغوي په شـان راټوله شـوې ده، انسـان کولی شي د څو ثانيو په موده کې د نړۍ له ګوټ، ګوټ څخه په زړه پورې معلومـات او اطلاعـات راټول او نورو خلکو تـه انتقـال کړي  خپـل نظر دمختلفو مســايلو په اړه ورسره شريک کړي . دموبايل او انټرنيټ په وســيله په څو ثانيو کې خپل پيغامونه، معلومات او تصــويرونه د خپلې خوښــې ځای ته ولېږي، د نړۍ لـه هر ګوټ د نبـټ پـه وســيلـه خپل پيغام، نظريات، عقايد او افکار نورو ته انتقـال کړي. دا لا پريږده چې د نړۍ د مختلفو د هېوادونو د نجونو او هلکـانو تر منځ ودونه وشول، چې دا کار څو کاله مخکې ناممکن، مګر نن ممکن دی، چې دا او دې ته ورته مسايل ټول د ارتباط په وسيله سرته رسيږي. نو بناً ويلی شو چې عصري ارتباطي  وسايلو له برکته نړۍ د يو  نړيوال کلي په شان ده، هر څوك کولی شي خپل افکـار او معلومـات پـه څو ثانيو کې له نړيوالو  سره شريك کړي که چيرې اړيکې او اوسـني عصرـي وسـايل نه وي نړيوال په به  د لرغونې زمانې په شـان بې اړيکو او له مختلفو کړاوونوسره به مخ وي.

## داخـلـي او خــارجـي روابــط ( Internal & External Contacts):

څرنګه چې خدای ج  انسـان يو اجتماعي مخلوق پيدا کړی، نو انسـان د خپلو اړيکو د پټينګولو لپاره تل کوشـش کړی او خپل روابط يې قايم کړي دي. د خپلو روابطو د قايم او دايم سـاتلو لپاره تل د خپلو هڅو او کوشـشـونو په نتيجه کې توانېدلی، چې

داسې اختراعات منځ ته راوړي، چې وکولی شي په اسانه او ارامه طريقه خپل روابط وساتلی شي.

دا دی نن انســان په ډېرې خوښــۍ سره کولی شي خپل نظريات، افکار، عقايد (ما فی الضــمير) معلومـات لـه خپلې ټولنې او د نړۍ پـه ګوټ، ګوټ کې له نورو سره شريك کړي او له هغوی سره همرازی شي، په مختلفو موضوعاتو کې ورسره همغږی شي يا د مختلفو پېښو په هکله غبرګون له مختلفو سياسي ټولنو او وګړو سره شريك کړي، خپل اهداف په مشـــترك ډول لاس ته راوړي، چې پورتني ټول کارونه د اړيکو په وسيله سره سرته رسيږي ښې بيلګې يې مختلف نړيوال سازمانونه دي چې د نړۍ دمختلفو پېښـو ، خوځښتونو ، او تړونونو په اړه سره همغږي کيږي په مشترک ډول يو تصـــميم نيسيـــ چې دا کار هم د اړيکو له برکته کيږي که اړيکې نه وي نو هيڅ نشته .

## د کايناتو مطالعه (Study of Universe):

د ځمکې په سر انسان يو عاقل ، متفکر مفسرين ليکي چې: کله خدای ج د انسانانو ارواوې پيدا کړې، نو يې ورڅخه پوښـتنه وکړه، چې (الســت بربکم) (ايا زه ســتاسـو رب نه يم؟) (قالوا بلی) دوی وويل: هو ته زموږ رب يې.

د پورتـه ذکرشـــوې وعدې او الهي عظمت له کبله کله چې انســـان د خپل ځان او کايناتو په هکله له خپل ځان څخه وپوښـتي چې: دا اسـمان، ځمکه، ستوري، غرونه، لمر، هوا، ســپوږمۍ، دريابونه، خزانې، ذخيرې، نباتات مختلفې خوږې مېوې او نور موجودات چا پيدا کړي؟ د څه لپاره يې پيدا کړي دي؟

ولې يې پيدا کړي دي؟

دا ټولې هغه پوښـتنې دي چې انساني ذهن په تحرك راولي او بالاخره دې ته متوجه کيږي، چې د کايناتو په هکله ژور فکر وکړي، د خپل ځان د ســهولت لپاره وســايل برابر کړي، تجسس او پلټنه پيل کړي، چې د کايناتو په هکله معلومات راټول کړي.

رســول الله صــلی الله علیه وســلم په دې هکله فرمايي چې: (تفکرو فی الاء لله ولا تفکرو فی ذات اللـه) یعنې تـاســو د اللـه تعـالی د کایناتو په هکله فکر وکړئ ، نه دالله ﷻ د ذات په هکله. نو دا دی ننني نړۍ کې انسـان د ځمکې سر ګام په ګام وکوت، خپل اهداف یې لاس ته راوړل اوس یې د فضاء د تسخیرولو او لټولو کار پیل کړی دی، چې د همـدغو پوښــتنو علـت دی، چې دالهي کـاینـاتو د لټولو، کتلو او معلومـاتو پـه هکلـه پـه لټـه کې دي او تر قیـامتـه بـه د ځمکې خزانې لټوي. الهي کاینات وګورئ چې پورته ټول کارونه به د اړیکو په وسـیله سرته رسـیږي او پرته له اړیکو هیڅ امکان نه لري.

## ټولنیز پرمختګ (Social Development)

د ځمکې پر سرمختلف قومونـه اوســیږي هر قوم او ټولنـه ځان، ځان ته دودونه او عنعنات لري هر هېواد ځان ته قوانین او اصول لري، ددې لپاره چې د ځمکې په سر ټول انســانان په ارام او هوســا توګه ژوند وکړي، نو د هېوادونو مشرــان (چارواکي) کوشش کوي، چې داسې اصول، قواعد او منظم نظام جوړ کړي، چې ټول انسانان په اسـانۍ او سهولت سره ژوند وکړي، یو بل ته ضرر ونه رسوي، یو بل ته د خیر سبب وګرځي، په پایله کې ټولنیز پرمختګ په منظمه توګه رامنځته شي او انساني ټولنه د ارامۍ احساس وکړي. (5: 23).

همدا رنګه د ځمکې په سر د مختلفو مذهبونو پیروان ژوند کوي، چې یو له بل سره ډېر توپیرونـه لري. لکه هندوییزم، بوداییزم، اســلام، عســایت، ارتودوکس او نور. دهېوادونو د مشرانو، د ملتونو د تګ او راتګ له کبله له دغو مختلفو عقیدوي لرې والي سره بیا هم انســانان یو له بل سره رابطې لري، تجارت او صـنعت لپاره یو ځای کـار کوي. لـه دې ټولو پولو تېرېږي د انســاني چوکاټ په داخل کې د ارتباطاتو له برکتـه د ټولنې د ســهولـت او اجتماعي ګټو لپـاره یو ځـای کار کوي، چې دا هم د روابطو په وســیله سره کیږي. دا دی نړۍ د نړیوال کېدو په لوري روانه ده، غربي

نظـام غواړي چې د نړۍ  لرې، لرې پراته هېوادونه سره نږدې کړي، څو وکولی شي پـه عـامـه توګـه يو (Globalization) نړيوال کېـدنه منځ ته راوړي چې دا هر څه د ارتباطاتو په وسيله سرته رسيږي خو ګټې به يې د غربيانو وي نه د بيرته پاتې نړۍ. همـدا رنګـه د نړۍ په کچه مختلفې تجربې په يو کس پورې نه پاتې کيږي، بلکې د ډلـه ييزو رســـنيو لـه برکتـه دده لـه نويو تجربو څخـه پـه څو دقيقو کې ټولـه نړۍ خبريږي ساينس کوشش کوي، چې ددغو تجربو خير ټولې انساني ټولنې ته ورسوي. (16: 23).

## فوري غبرګون (Instant reaction)

د لوی خدای ج بهتر مخلوق تل په دې هڅه کې وي چې خپل افکار، نظريات، علم، تجربې معلومـات او اطلاعـات نورو تـه ورســـوي. د  دوی د افکـارو، نظريـاتو، علم تجربې، معلومات او اطلاعاتو اخېســتونکی فوراً مثبت يا منفي غبرګون ښـيي، يعنې دده پيغام يا مني او يا يې ردوي، چې دغه پيغام منل او يا ردول د مقابل شـخص په افکارو کې تغيير او بدلون راولي، چې دا عمل (د پيغام منل يا ردول) په انساني ټولنو کې د مختلفو تغييراتو سبب ګرځي، چې کله ټولنې ته مثبت او کله مضر تماميږي، افکـار راويښـــوي پـه نړۍ او هېوادونو کې د لويو، لويو تغيراتو او  انقلابونو ســـبب ګرځي، نو ويلی شــو ، چې کله، کله غبرګونونه د مختلفو پرمختګونو ســبب ګرځي، چې دا هم د ارتباط پو په زړه پورې ارزښت دی. (6: 23).

## ارتبـاط د يـو علم پـه توګـه ( Commnication as a Science)

څرنګه چې په ننۍ متمدنه نړۍ کې ارتباط د يو مهم مسلك حيثيت غوره کړی، د نړۍ پـه مختلفو هېوادونو کې  دارتبـاطاتو څانګې موجودې دي، د انســـاني ژوند د بهبود په مختلفو څانګو (سياسي، ساينسي، اجتماعي، اقتصادي، کلتوري او زراعتي) کې تحقيق او څېړنې کوي او دغـه څېړني د نړۍ له مختلفو ملتونو، حکومتونو سره

شريكوي او په مشـــترك ډول د مختلفو مشــكلاتو د حل لارې لټوي، چې د نړۍ په كچه په اســانۍ سره وكولی شي، دمختلفو مشــكلاتو مخه ونيسيــ او د نړۍ د هر گوټ انسان له شره خلاص كړي.

دا دی نن يې موږ د سر پـه ســترگو گورو، چې د ټولې غربي نړۍ انســانـان د يو مشــترك هـدف لپـاره كـار كوي او زموږ پـه كليو او كورونو كې خپل هدف لاس ته راوړي، نو ځكه ويلی شو، چې ارتباط نن ورځ د يو اساسي علم او پوهې حيثيت لري.

## د ارتباط عناصر:

څرنگه چې انسـان د خپل ژوند د پايښـت لپاره هوا او اوبو ته ضرورت لري، نو همدا رنگـه اړيكو تـه هم ضرورت لري او بې لـه اړيكو منظم ژونـد هيڅ امكـان نه لري، نو ويلی شـــو، چې تر څو دا نړۍ وي نو ارتباط به هم دوام لري او له ارتباط پرته ژوند ناممكن دی.

داړيكو پوهانو د انســانانو تر منځ د ښــه او اســانه پوهاوي لپاره داړيكو ماډلونه اختراع كړي څو يو له بل سره په اسـانه وكولی شي اړيكې ولري ، د لا ښـه پوهېدو لپاره ماډل پيژنو چې څه ته وايی .

Model

## ماډل څه شی دی ؟ او د اړيكو پوهان يې څنگه را پېژني؟

ماډل د دې عصرــ اړينه موضــوع ده ، ځكه د هر كار له پيل څخه وړاندې ماډل جوړيږی او بيا وروسته ماډل د يوي لارښوونې په توگه مخې ته ايښودل كيږي او د هغه له مخې د موضوع څېړل پيليږی .

همداراز ماډل نه يواځې په رسـنيو ( ارتباطي وسـايلو ) كې مهم دی بلكې د ژوند په ټولو برخو كې د ډير ارزښت درلودونكی ده .

پـه ورځني ژونـد كې مونږ ټول مـاډل كـاروو، د طبعی علومو پوهـان حســابي ماډل كاروي ، همدا راز ماډل يوه ســنتي كلمه ده چې په اوريدلو سره يی زمونږ ذهن كې

بیلابیل انځورونه او تصـــورات را پیدا کیږی لکه د کور ماډل ، د فیشـــن ماډل ، ډیزاین او داسی نور ...

**ماډل :**

ماډل اصلا د انسان هغه فکري پلان دی چې د کار له کولو مخکې یې په ذهن کې تشکیلیږي د کار په کولو اوسرته رسولو کې اسانتیا راولی .

**محمد افتخار وایی :**

د انسان په ذهن کې د عمل وړ خیال له ماډل څخه استازیتوب کوي . (۲٦٥:۱)

د یو شي لـه چمتو ( جوړښـــت ) وړاندې د هغه خاکې جوړولو ته ماډل ویل کیږي (نیازی).

ماډل د یو شي په هکله یو ذهني یا خیالی انځور ده چې له اجرا وړاندې د انسان په ذهن کې جوړیږی ( نیازی) .

**دماډل موخې :**

په ۱۹۵۰ میلادي کال کې ماډل د لومړی ځل ددې لپاره وړاندې او مطرح شــو چې د انســانانو ترمنځ اړیکې په اســانه ډول ټینګې شي. اوپوهانو لاندې اهداف ورته وټاکل .

- په نوې بڼه به نظریات مطالعه کوي
- نوي نوښتي افکار ، به تشویق اوځلوي .
- څېړونکو سره به د څېړنیزو اصطلاحاتو په پوهېدو کې مرسته کوي .
- ماډل به د یو شي ټول ګونګ ، مبهم ټکی او واقعیتونه روښانوي .
- څوک چې یو مکمـل مـاډل جوړوي، د هغـه مربوط ټول عنـاصر ، او د عنـاصرو ترمنځ اړیکی پیغـام او د هغـه معنی او د پیغام د غبرګون په هکله به مهم معلومات تشر‌یح کوي ، که دا کار ونه کړي نو ماډل یې ضـعیف او د بیا کتنې وړ دی. (۱۴۵:۳)

ماډل تل دا څرګندوي چې د ارتباطي عمل د برقرارولو لپاره باید کوم ډول ځانګړي شرایط وضعه شي څو د محیطي شرایطو په رڼا کې شته ټول مشکلات حل شي.

همدارنګه ماډل د اصطلاحاتو په پوهاوي کې له زده کونکو سره مرسته کوي.

ماډل د ځینو مسایلو په وضاحت کې مرسته کوي. ځکه چې ماډل معلومات او مطالب په ساده بڼه بیانوي.

د ماډل یوه موخه دا ده چې اشیا او نظریات په یو نوي طرز سره مطالعه کوي.

د نمونې په ډول څو ماډلونه تر مطالعې لاندې نیسو او ځینې ځانګړتیاوې او نیمګړتیاوې یې په نښه کوو.

Laswell Formula

د انسانانو تر منځ لرغونې اړیکې د وسایلو او اړتیاوو له مخې یو ډول وي ، ولې کله چې د انسانو تر منځ جګړې او لانجې منځ ته راغلې نو اړیکو لا ارزښت پیدا کړ او ځانګړې بڼه یې غوره کړه .

له دویمې نړیوالې جګړې وروسته (اړیکې) په یو نوي رنګ سره راښکاره شوې، ځکه چې د لویو ځواکونو تر منځ لوی کش مکش روان وو هر چا غوښتل چې له نویو سیاسي دوستانو سره ښې اړیکې ولري، له همدې کبله په ۱۹۴۸میلادي کال کې (لېزوېل )چې د امریکې یوه ماهره سیاسي څېره وه او د اړیکو د ټینګولو په برخه کې یې جایزه هم اخستې وه، د اړیکوپه هکله یو ماډل وړاندي کړ. نوموړي په خپل

ماډل کې بعضې عناصر ډېر با ارزښته وبلل ، د هغو عناصرو په بنه یې څو پوښتنې په نښه کړې چې د انځور په شکل یې په لاندې ډول وړاندې کړ(۲۴۴:۱)



Harold Dwight Lasswell




Major Characteristics

سرچینه: ( source-Communication )

لومړی غواړو پوه شو چې سرچینه څه شی ده؟

شـــخص ، اداره یـا ارگان سرچینې دي، کوم کس، اداره یا... چې خبرې کوي باید ،با باوره او ریښــتنی ،او صـادق وي ، که با با وره نه وي خبرې(پیغام) یې څه ګټه نه لري مقابل طرف نه شي له اغیز لاندې راوستلی ، او کله چې خبرې کوي له داســې اصــولو او کلماتو څخه کار واخلی چې خلک ځان ته را نژدې کړی او تل ریښــتیني اوســی .الله خپلو بنده ګانو ته فرمایي : یاایهاالدین امنوا اتقوالله وقولوقولاســدیدا. ای هغـه کســانو چې ایمان مو راوړی له خدایه و ویریږی او حق ووایاست .

او د اسلام ستر پیغمبر محمد ص فرمایي چې : وقولوالحق ولو علی انفسکم . تاسـو حق ووایاســت اګر که په خپل ځان مو هم وي ، له دې څخه موخه داده چې که په ریښتیا ویلو کې مو ځان ته زیان هم رسیږي تاسو باید ریښتیا ووایاست ، نو چې له نن څخه ۱۴۰۰ کاله مخکې د اســلام مبارک دین کې د صــداقت او ریښتیا ویلوامر شوی ی نو موږ د اسلام امر چې له پورتني لیکوال څخه مخکې راغلی ثابت او ریښتینی دی ضرور یې باید ومنو .

**پیغام**: ( Massage )

پیغام کې مونږ دمنبع خبر ه اورو او ګورو چې خبره څه ده او ویناوال په کوم ډول او طریقـه خپل پیغام تر ټولنې رســوي ، کوم ځانګړي هدف له ځان سره لري کـه نـه ولې د پیغـام پـه لیږلو ، ویلو ، او وړانـدې کولو کې مهمه خبره داده چې پیغام باید واضــح ، روښــانه او معلوم وي نه زاولن بې خونده او غیر موثر ځکه چې غیر موثره وینا هیڅ ځای نه نیسي .

لوی خدای ج په قران کې خپل استازي حضرت محمد ص ته فر مایي :

وقل لهم فی انفســهم قولا بلیغا دوی ته نیکې او خوږې خبرې کوه .. بل ځای کې فرمایي

وقل لهم فی انفسهم قولا معروفا؟. دوی ته په روښانه ډول خبرې کوه ،

له پورت الهی ایتونو څخه معلومیږي چې د انسانانو تر منځ خبرې باید واضح ، روښانه ، له ابهام او شک پرته شمارلې او معلومې وي څو زموږ موخه مقابل سړي ، ډلې ، ټولنې یا هدف وړ خلک سم معلومات تر لاسه کړي .

لـه پیغام څخه موخه د ماخذ په ذهن کې هغه افکار دي چې د الفاظو ، یا تصـــویرونو پـه بڼـه د ده له ذهن څخه خارج او هدف وړ خلکو یا ټولنې ته د یوې وسیلې پرمټ رسیږي.

د مثـال پـه ډول خپـل افکار د قلم پر مټ د کاغذ پر مخ لیکي، یا هم د هوا د څپو پر مټ د غږ او تصـویر په بڼه خپل خیالونه تر نورو ، رسـوي. چې همدغه بلل کیږي.

همدارنگه کولای شو په لاندي توگه یې لنډ واضح کړو.

ماخذ ، منبع افکار.

چینل یا وسیله.

## پیغام اخیستونکي ( مخاطبین).

د ارتبا د نامتو کتاب لیکوال (ولبسرـشریم) په خپل اثر Process of Effects Mas Communication کې پیغام داسې تعریفوي.

پیغام که تحریري وي، شــفاهي وي او یا د بدن د غړو د اشــارو او یا نورو علامو په وسیله پیغام دی.

پـه حقیقـت کې پیغـام هغـه الفاظ، احســاســات، معلومات، اطلاعات ، عقاید او مفکورې دي، چې دوهم یا مقابل وگړي پرې پوه او پیغام لېږونکي ته ډاډ او اطمینان حاصل شي. (6: 24).

او كله، چې څوك پيغام چاته لېږي اوغواړي چې مقابل شـــخص دده له پيغام څخه ژر متاثر شي، نو لازمي او ضروري ده، چې لاندې مهم ټكي ټينگ په نظر كې ونيسي، چې په بيړه او پرته له كوم تكليفه خپل هدف ته ورسيږي.

✱- كومې ټولنې يـا وگړو تـه چې پيغـام چمتو كوو، نو بـايد د هغې ټولنې (خلكو) د علمي سويې او ژبې په اړوند پوره معلومات ولرو .

همدا رنگه د هغې ټولنې اســاسي غوښـــتنې او ضروريات په جدي توگه په نظر كې ونيســو، څو مو په لار كې خنډونه پيدا نه شي او په اســانۍ سره خپله موخه لاس ته راوړو.

✱ــ ددې ټولنې، چې موږ ورته پيغام چمتو كوو، بايد ديني عقيدوي، اسـاسـات او كلتوري او سياسي مسايل بايد كلك په نظر كې ونيسو، ځكه چې ژورناليست چې په هره ټولنه كې ژوند او كار كوي بايد د هغې ټولنې ديني، عقيدوي، كلتوري، سياسي او تـاريخي مســـايلو تـه كلكـه پـاملرنه وكړي، چې په ريښـــتيني توگه ځان د ټولنې نماينده وښيي او د ټولنې وگړي د مختلفو مسايلو په هكله حقايق ورته څرگند كړي د نړۍ دملتونو تر منځ ډيرى وخت مشكلات د كلتورونو پر سر را منځ ته كيږي ، او ژرنالستان مجبور دي چې د هر هېواد ، سيمې او ټولنې د ټولو اړخو احترام ولري څو په رښتيني ډول د ټولنې د ضمير دغږ باور وساتلى شي .

لوى خداى ج په قرآن كريم كې فرمايي چې: (تاسو هغو كسانو ته، چې پرته له خدايه د بل څه عبادت كوي، سپكې سپورې مه وائي)

ولې بيـاهم چې كلـه د پيغـام منبع يـا ماخذ پيغام ليږي بايد لاندې ټكي په نظر كې ونيسي بايد داسې لار غوره كړي چې:

✱- په مربوطه ټولنه كې ټولو خلكو ته د منلو وړ وي او په مختلفو ســختو شرايطو كې خلك ورته په درنه سترگه وگوري، اعتماد او باور پرې وكړي.

✱- همدا رنگه پيغام چمتو کوونکی باید داسې پیغام ټولنې ته ولېږي، چې د ټولنې د ما فی الضـــمیر اواز اوچت کړي. د ټولنې د هیلو او غوښـــتنو د پوره کولو ځولۍ ورډکه کړي.

✱- او همـدا رنگه پیغام چمتو کوونکی مجبور دی، چې د ټولنې اقتصـــادي او ملي مسایل هم په نظر کې ونیسي.

که چېرته پیغام لېږونکی پیغام د پورته ذکر شویو نقاطو په نظر کې نیولو سره چمتو او وړاندې کړي او د ټولنې له دیني، عقیدوي، ملي، کلتوري، سـیاسي او اقتصـادي غوښـــتنو سره همغږي وي، نو فوراً قبلیږي، (منل کیږي) او که چېرته د یوې مرجع پیغام ذکر شوي نقاط په نظر کې ونه نیسي، نو یې پیغام ردیږي، ټولنه یې په مقابل کې پورته کیږي او په نتیجه کې د هېواد، نړۍ او ســـیمې په کچه مختلف ټکرونه، تضـادونه، اختلافونه او کړکیچونه منځ راځي، چې دغه سیاسي، فکري، عقیدوي، او اقتصـادي ټکرونه په لسـگونو کلونه نیسيـ، د مختلف انقلابونو منځ ته راوړي او په دې لارو کې د زرگونو، لکونو او میلیونونو انسانانو وینې تویيږي.

ندیم الحسن (2008) لیکي:

په حقیقت کې پیغام د ارتباط د عمل یوه مرکزي نقطه ده، چې په الفاظو، اشارو او علامو کې انســـان تـه د جوړښـــت  او یـا بربـادۍ امر کوي او د طرفینو تر منځ تشکیلیږي.

یوویشـــتمـه پېړۍ د اطلاعـاتو، معلوماتو، تکنالوژۍ او پرمختگ پېړۍ ده. انســـان مجبور وي، چې  اړیکې  ټینگې کړي. ددې تخنیکي او ارتبـاطي وســـایلو (انټرنیټ) رادیو، تلویزیون...) له کبله موږ د ارتباطي وسـایلو د معلوماتو اواطلاعاتو رسـوونکي نه، بلکې ښـــکار شـــوي یو، نو له دې کبله باید پیغام داســـې چمتو کړی شي، چې

انســانانو ته په زړه پورې وي، ارزښــت او اهميت ولري  په وســيله يې باور لاس ته راوړل شي او په خپله د پيغام منلو ،اخيستلو  او غبرگون ته تيار شي.

## پيغام لېږونکی (Sender)

دې منبع ياځاى ته Source هم وايي. دا هغه وګړي، ډله، اداره او يا تنظيم دی، چې پيغام جاري او يږدوي  پيغام لېږونکی يو  واحد شخص  يا اداره  وي، نو له دې کبله له دې عنصر څخه پرته اړيکې ناممکې  دي، دا د اړيکو د عمل لومړنۍ وسيله (پايه) ده، څرنگه چې د پيغام د لېږونکو  (ماخذ) يا منبع مختلفې او بې شـماره دي، همدا رنگه يې وسيلې هم مختلفې او رنگا رنگ دي.

سرچينـه بايد  ،با باوره  او ريښـــتنی وي که با ، با وره نه وي خبرې(پيغام) يې څه گټه نه لري.

وسيله  يا چينل: ( Channel )

د اړيکو او تبليغ  يا پيغام  درسولو په عمل  کې تر ټولو خورا ارزښت لرونکی عنصر د پيغام د ليږد وسيله بللی شو، د پيغام د ليږدولو لپاره د ليږد يوې وسېلې ته اړتيا ده چې د پيغـام ليږدونکي او د پيغـام اخيســـتونکي تر منځ اړيکې ټينگې کړي، پـه اړيکو کې وســـېلې تـه چينـل ويـل کيږي،  چې پـه مرســـتـه مونږ خپـل پيغـام تر مخاطبينونو  (هدف وړ ټولنو) رسـوو  ، چېنل عموماً هغې واسطې  يا وسيلې ته وايي، چې مطلوبه ځای، اشــخاصــو يا هدف ته زموږ پيغام رســوي، لکه راديو، تلويزيون، انټرنيـټ، مجلې، ورځپاڼې، جريدې، کتابونه، مبايل او د دوی نور ممد مواد (کومك کوونکي مواد لکـه ټيپ، ســـينما....)نور چې تر ټولنې ، وگړو ، ډلو ..پورې زموږ غږ رسوي .

## مخاطبين  ( موصول کننده ) يا پيغام اخستونـکي  Receiver

له مخاطبينو څخه زمونږ هدف د پيغام اخيستونکي دي، يعني هغه شخص ، گروپ يـا ډله چې له يوې سرچينې څخه هغوی ته د تبليغ په موخه يو پيغام ليږل  شـــوی وي، پـه اړيکو کې لـه مخـاطبينو څخـه زمونږ موخـه لوســـتونکي، ليـدونکي او ،

اوریـدونکي دي ، کیـدای شي زموږ مخـاطـب فرد ،ډله اویا  هم د ټولنې عام وګړي وي.

په بل عبارت :

دلتـه هـدف اورېـدونکي (Audience) کتونکي (Viewers) حاضرین دي او  د منزل مقصـود (Destination) لفظ هم ورته اسـتعمالولی شـو. دلته مقصـد او هدف هغه قوم، ملت، ډله یا وګړي دي، چاته چې پیغام رسـېږي او هغه یې د پوهېدو، اورېدو او اخېســتلو یـا منلو هڅې  کوي، چې پیغام لاس ته راوړي او هم زموږ موخه چې د مقابل په افکارو کې بدلون دی تر لاسه کړی شي .

(5) د پیغام اغېز (Effect of Message)

د پیغام اسـاسي هدف او مقصـد همدغه دی، چې پیغام اخیسـتونکی تر خپل اغېز لاندې راولي او خپل هدف (مطلوبه ټولنه) په نظرياتو، معلوماتو او افکارو کې تبدیلي او بدلون  راولي. نو ځکه دهر پیغام په رسیدو سره مطلوبه ټولنه یا وګړي د پیغام په مقابل کې عمل کوي (پیغام مني او یا غبرګونن ښیي) چې منل یا ردول د پیغام اغېز (اثر) ښــیي، که پیغام ومني اوعمل ته چمتو شي، نو زموږ د پیغام اثر یا اغېز مثبت دی او کـه یې رد کړ، نو زموږ د پیغـام اغېز منفي دی، چې دا کار له ډېرو پلټنو، تحقیق او څېړنو وروسته لالس ته راځي، ډېر وخت ته ضرورت لري، چې د ټولنې عامه افکار د پیغام د منلو لپـاره چمتو او بیـا پیغـام ورتـه ولېږي، د یـادولو وړ ده، چې  د پیغـام د منلو لپـاره د ټولنې چمتوکول ډېر پېچلی کار دی، پوره مهارت، تجربې، پوهې او ډېرو مصارفو ته ضرورت لري، چې هر سړی، اداره  او  ارګان یې نه شي ترسره کولی بلکه نادر ې ځانګړې ډلې او حلک دي چې داسې کارونه ترسره کوي .

**Formula No. 2**



ماډل د ژوند دمختلفو چارو لپاره په مختلفو طریقو او شکلو سره استعمالیږي خو په عام ډول سره ماډل د ارتباطي موضوعاتو د ساختماني جوړښت او د انساني اړیکو لپاره ډیر کارول کیږي .

(لاسویل )په خپله د اړیکو د بیلابیلو بڼو د ښکارولو د تحقیق په لاره کې له ماډلونو څخه کار اخستی دی (۶۵۷:۲)

**مثبت ټکي :** لیزویل په خپل ماډل کې د اړیکو اصلي روح بیانوي له همدې کبله نن ورځ دغه ماډل د اړیکو په برخه کې موثر ګڼل کیږي . که څه هم دغه ماډل لرغونی دی مګر نن ورځ هم په پراخه کچه استعمالیږي .

**منفي ټکي:**

کله چې لیزویل دغه ماډل وړاندي کړ د هغه اصلي موخه په سیاسي تبلیغ کې د هغه استعمال وو بناّ دغه ماډل په سیاسي تبلیغ کې ډیر ګټور ده ، ځکه موخه یې دخلکو پوهول او متاثره کول دي .

پیغام ورکونکي تل هڅه کوي تر څو د پیغام اخستونکي متاثرکړي نو ځکه په دغه ماډل کې ارتباط په تشویقي اوترغیبي بڼه وړاندې کیږي، حال دا چې په عملي توګه په هر ځای کې امکان نه لري او د ژوند ډیری مسایل له سیاسي تبلیغاتو بیل او ځانګړی لوری لري ، هر ځای ددې ماډل استعمال ممکن له کړاو سره مخامخ شي خو په سیاسي تبلیغاتو کې کره رول لوبوي .

بل داچې په دې ماډل کې د غبرګون عنصرنشته او یواځې د پیغام اغیز ذکر شوی څو چې په اړیکو کې غبرګون نه وي موږ په خپل ښه ،بد، موثر او غیر موثر کار نه

پوهیږو ځکه د غبرګون په وســیله موږ ژر خپله نیمګړتیا پیژندلی او اصــلاح کولی شو.

په دغه ماډل کې ځینې انســاني غوښــتنې په نظرکې نیول شــوې دي خو د پیغام ورکونکی او پیغام اخیســتونکي کلتوري ، ټولنیز ژوند او چاپیریال په پام کې نه دی نیول شــوی، حال دا چې دا ټول دانســاني ټولنې او ژوند مهمې برخې دي او په یو ویشــتمه پیړۍ کې دهېوادونو د ټکرو یو لامل همدا کلتوري ، ســیاسي او اقتصادي مســـایل دي ، د هیوادونو اســـتراتیژیک ارزښـــت هغه څه دی چې د نړۍ د وګړو دژوند مسیر ټاکي .

**دمنبع تجزیه: (Source Analysis)**

د منبع په اړه مختلفو عالمانو ځانګړي نظریات ورکړي دي خو منبع اصـــلا د اړیکو اســـاس بلـل کیږي او ارتبـاطي عمل یوې ارتباطي وســـیلې ته اړتیا لري،چې بې له وسیلې اړیکې ناممکنې دي

مثـال : کـه کوم کس خبرې ، لیکـل او یا هم اشـــارې کوي نو د ده خوله ،قلم ،او اشارې د ده ارتباطي وسیلې ګڼل کیږي بې له وسیلو اړیکې نیمګړې او ټکنۍ دي که غواړو چې اړیکې ولرو د اغیز لپاره باید داسې وسیله غوره کړو چې تر منزله مو ورسوي .

**د موضوع تجزیه: (Content Analysis)**

دلته دا څیړو چې منبع د پیغام لپاره څه ډول الفاظ ټاکلي د پیغام معنی تر کومه حده موثره ده ، ټاکلي الفاظ زموږ موخه په غیږ کې را نغښتی شي که نه ؟او څومره خلک تر اغیزلاندې راوستلی شي. د ټولنې ، د چاپیریال او حالاتو په نظر کې نیولو سره باید موضـوع داســې تحلیل شي چې په اســاني او خوشـحالي سره پیغام خپـل هـدف ته ورســـیږي الفاظ او کلمات باید تجزیه او وتلل شي څو هغه څه چې زموږ موخه لاس ته راشي .

## د رسنۍ څېړل : ( Media Analysis)

د پیغـام د لیږلو لپـاره مونږ یوې وســیلې تـه اړتیـا لرو چې د پیغـام لیږدونکي او اخســتونکو تر منځ اړیکې ټینګې کړي ، د رســنۍ ټاکنه په دې معنی چې زموږ دهدف وړ ټولنه ورته لاس رســی ولري او که یې ونه لري نو هســې خواري ده او بې ګټې کار دی او که لاس رســی ولري بیا باید دا و پوښــتو چې ایا خلک یې تر اغیز لاندې را وستي شي که نه ؟.

که چیرې موثره نه وي باید بله رسـنۍ وټاکو څو مو وخت ضـایع او هدف وړ ټولنه یا وګړي له لاسه ور نه کړو .

## د مخاطبینو څیړل:

د اړیکو په ټینګولو کې پیغام لیږونکی باید له ځانه و پوښتي چې!

هغه وسیله چې پیغام مو پرې لیږلی ، تر پیغام اخستونکي رسېدلی ؟

که رسیدلي وي اغیزې یې په څه ډول دی ؟

مثبت دی که منفي ؟

که اغېزې یې مثبت او یا منفي وي باید په دلایلو یې پوه شــی . د اغیز له مطالعې څخه مونږ ته دا معلومیږي چې پیغام مو تر کومه بریده موثر تمام شــوی دی ، ولې موثر دی ؟ څنګه کولی شو نور هم وړاندې لاړ شو !

د معلوماتو د لنډون لپاره لاندې شکل وګوری (۱۱۸:۴)




Explanation

ځيني پوهـان پـه دې آند دي ، چې که څه هم د ليزويل ماډل ډېر موثر ده . ولې له موثريت سره ډېر ساده هم دی، له همدي کبله هغوی د دغه فورمول د بډاينې لپاره بعضي مسائل ورزيات کړل .

په کال ۱۹۵۸ ز کې د عامه اړيکو يو عالم ***براډک*** د ليزويل وړاندې شـوي ماډل کې دوه نقطې ور زياتې کړې .

په کوم وخت کې پيغام ليږل شوی؟

د پيغام ليږونکي موخه څه وه؟




پيغام په کوم وخت کې ليږل شوی دی؟

مثال:

په يو ټولگي کې چې ښـونکي د ټاکل شوي وخت لپاره تدريس ته راځي ، د درس په شروع کې ښونکي او زده کونکي دواړه تازه وي د وخت په تيريدو سره دواړه خواوو کې د سترړيا احساس را پيدا کيږي او تازه گې ورو ورو کميږي نو ويلی شو چې د ښـــونکي د پيغام اغېز په دواړو حالاتو کې يو ډول نه دی چې همدغه مو ضـــوع په پورتني مثال کې واضح شوې (۱:۲۷۹) .

**د پيغام ليږوونـکي موخه څه ده؟** what purpose

هره اداره ، ارگـان ، وگړی او يا ټولنه چې پيغام ليږي ضرور موخه لري که هغه هر ډول وي ، په هيڅ حالت کې بې موخې پيغام نشـــته د ژوند په ټولو عادي ، ټولنيز ،ســـيـاسي ، نظامي .... حالاتو کې پيغام با هدفه وي که هدف ونه لري نو دا عبث

ژوند دی او په مړه حســابیږي که موږ په کور کې دیو ماشــوم روزنې ته ګورو  هغه هم زموږ د يوځانګړي هدف لپاره روزل کیږي چې موخه مو د ماشــوم ســالمه پالنه اوروزنه ده  او بالاخره د کورنۍ سرلوینه ده .

مثال:

یوه کورنۍ او والـدین تـل  د خپل ماشــوم په روزنه کې ډیره هڅه کوي غواړي چې مـاشــوم تـه د ښــونې او روزنې  ترڅنګ خپل کړه وړه  او کورني دودونه هم داسي ورزده کړي چې  مـاشــوم تر اغېز لاندي را ولي ، ځکه چې ماشــوم په ټولنه کې د والـدینو  داخلاقو بېلګـه ده ، والدین غواړي چې اولاد یې په ټولنه کې سر لوړی او با اخلاقـه وي نو لـه همـدې کبلـه  پیغـام بـایـد یو ځـانګړی هـدف ولري ،څو یې پایله وګوري

نو له  همدې کبله له هر پیغام څخه  سرچینه ځانګړې  موخه لري چې باید لاس ته یې راوړي .

کـه  چیرې لاس تـه را نه وړل شي نو پیغام  بالکل بې ګټې دی او پر مقابل لوري یې هیڅ اغیز نه دی کړی.

په بل عبارت  : انساني اړیکې بې موخې نه دي باید موخه لاس ته راشي .

Shannon and Waveron’s Model

**کلاوډ ایلوډ شین او وارن :**

دوی  لـه یوه مخابراتي شــبکې سره کار  کاوو  د لومړی ځل یې  د ابتدایې ارتباطي مـاډل لپاره  تر ټولو موثر ماډل په کال ۱۹۴۷ ز کې منځ ته راوړ، او په کال ۱۹۴۹  په حقیقي شــکـل سره ټولنې تـه  وړانـدې کړ ، د دوی  هڅه دا وه چې خپل کړی کار ټولنې ته وښـی یي چې موږ دا چوپړ کړی دی ، په لاندې شکل کې د دغه ماډل هر څه روښانه شوي دي چې ستاسو د لا ښې پوهې لپاره یې وړاندې کو (۲۲:۵)




**اطلاعاتي ماخذ: (Source)**

له ماخذ څخه مراد د معلوماتو د حاصلولو وسیله ده او د اړیکو لومړنۍ مرحله ، له ماخذ څخه پیلیږي چې د معلوماتو ذ خیره یا منبع هم بلل کیږي .

د مثال په ډول که څوک څه وایي، اشـــاره کوي یا لیکل کوي په اړیکو کې دې ته ماخذ ویل کیږي.

***مرسله:*** (Transmitter)

په اول کې د منبع (ماخذ ) په ذهن کې پیغام تل د یو خیالي انځور (تصویر) په بڼه سره وي کله چې دغه خیال او تصـویر دالفاظو شکل و نیسي نو پیغام منځته راځي له خیال څخه د پیغام جوړیدلو مرحلې ته رمزکاري یا ټرانسمیټر وایي په دې معنی

چې کلـه لـه ذهن څخه خبره دباندې د عمل لپاره را باســې غواړې چاته یې ولیږې همدغه عمل ته لیږل وایی .

***وســیله*** : (Channel)د پیغام د لیږد لپاره مونږوســیلې ته اړتیا لرو چې د ماخذ او منزل تر منځ د اړیکو درســولو کـار ورکړي د اړیکو په اصــطلاح کې مونږ هر ډول وسیلې ته چینل وایو چې په انساني اړیکو کې په څلور وسیلو اړیکې نیول کیږي چې له ژبې ، اشارو علامو ، څیرې او لیکلو څخه عبارت دي .

او کلـه چې د ډلـه ییزو اړیکو لپـاره پیغـام چمتو کوو نو بیـا پـه ډله ییزو اړیکو کې وسیلې په دوو ډولونو ویشل کیږي په لاندې ډول یې فقط نومونه لیکو .

***برقي وسیلې :*** لکه راډیو،ټلویزیون او انلاین رسنۍ

***چاپي وسیلې :*** لکه اخبار او نور چاپي رسنۍ شاملیږي

د اړیکو په وسـیلو کې زمونږ پنځه ګونی حواس هم شـاملیږي یعني د پیغام لیدل ، لوسـتل ، پیغام لیږل او د پیغام اوریدل ټول د اړیکو بیلابیلا وسـیلې دي خو زموږ له دې پنځه کونو حواسو څخه پرته نیمګړې دي .

***پیغام اخیستونکی:*** (Receiver)

کله چې مخاطب یا اخســتونکی له پنځو حســونو څخه د یو حس په وســیله پیغام حاصـلوي نو ، نوموړی شــخص په خپل ذهن کې له خپلو تجربو سره پیغام همغږی کوي او بیا خپل غبرګون ښــکاروي په دې معنی چې پیغام لومړی په انســاني ذهن کې تحلیل او تجزیه کیږي چې د ټولو اړیکو اساس او مرکز ګڼل کیږي .

که چیرته د پیغام اخیســتونکي په ذهن کې د شــته او موجوده تجربو سره همغږي ولري نو په دغه صــورت کې نوموړی شــخص کولای شي د پیغام په مانا پوه شي او که چیرته پیغام د نوموړي شخص له تجربو سره همغږي ونه لري نو په دي صورت کې د پیغام د مانا له پوهیدلو څخه پاتي راځي او غبرګون به یې حتما منفي وي.

***منزل، مقصد:*** (Destination)

لـه منزل څخـه موخـه ، پیغـام اخیســـتونکي دي، یعني داسي کس یا ډله چې د هغوی لپاره ماخذ پیغام ایجادوي. د اړیکو په اصــطلاح کې لوســتونکي، کتونکي او اوریـدونکي مخاطبین بلل کیږي. کیدای شي مخاطبین یو کس، ډله، یا عام وګړي وي.

***پیغام:*** (Massage)

له پیغام څخه موخه د ماخذ په ذهن کې هغه خیالونه دي چې د الفاظو یا د تصویر په بڼه د ماخذ له لوري وړاندي کیږي، او بیا د یوې وسیلې پر مټ تر نورو رسیږي. د مثـال په ډول خپل خیالونه د قلم پر مټ د کاغذ پر مخ لیکي، یا هم د هوا د څپو پر مټ د غږ او تصویر په بڼه خپل خیالونه تر نورو رسوي. دغه ته پیغام ویل کیږي. (۳۲:۵)

همدارنګه کولای شو په لاندي توګه هم ښکاره کړو.

د ماخذ خیالونه.

چینل یا درسولو وسیله.

د پیغام اخیستونکي ( مخاطبین).

شور: (Noise)

د ارتبـاط په دغه عمل کې د پورته ذکر شـــوي پنځو ترکیبي عناصرو سربیره یو بل وړوکی عنصرـ هم اغیزه لري چې د اړیکو په اصـطلاح کې ورته شـور یا Noise ویل کیږي. په حقیقت کې شـور هغه خارجي عواملو ته ویل کیږي چې د پیغام صـحت متاثر کوي او د صـحیح پیغام په رسـیدوکې خنډ ګرځي ، او ځینې وختونه حتی د پیغام د مطلب د بد لیدو ســبب کیږی. په دې مانا چې د شـــور له وجې پیغام په صحیح توګه تر مخاطبینو نه رسیږي.

ددغه ماډل په اساس د ښو اړیکو  دټینګولو په لار کې شور یوه ستره ننګونه شمیرل کیږي . شـــور کولای شي وړانـدي لـه دې څخـه چې پیغـام تر ټـاکلي منزلـه پورې ورسیږي مختلف خنډونه ایجاد کړي،

د مثال په توګه کله چې دوه طرفه غواړي د مبایل ټیلیفون په واسطه خبري وکړي د کرښې خرابوالي د شور باعث کیږي او نه پریږدي چې طرفین په سمه توګه یو له بل سره اړیکـه ټینګـه کړي، همـدارنګـه کلـه چې تـاسي غواړئ له کوم کس سره خبرې وکړئ او نوموړی کس ستاسو خبرو ته تمرکز و نه لري او سوچ او فکر یې په بل ځای کې وي او په خیالونو کې ډوب وي چې دا په خپله د پیغام پر وړاندې خنډ ده.

***نیمګړتیاوې:***

۱ :  دا خبره د پام وړ ده چې که څه هم دغه ماډل د اړیکو په تیورۍ کې نوي اړخونه وړاندې کړي خو دې ته په پام سره باید ووایو چې هیڅ  ماډل نـه شي کولای چې ارتبـاطي عمـل پـه مکملـه توګه احاطه کړي له همدې کبله دغه ماډل هم د ارتباطي عمل یوه نا مکمله نقشه وړاندې کوي.

۲: همدارنګه باید په پام کې ولرو چې دغه ماډل د اړیکو عمل په مکمله توګه سـاکن ښکاره کو ي، حال دا چې د پیغام یوه ښه ځانګړتیا دا ده چې تل جاري  دوامدار وي.

۳:   دغه ماډل د اړیکو یو طرفه عمل ښـــی یي په دغه ماډل کې  یو مهم اړخ چې غبرګون یـا فیډبک دی نه ده شـــامل شـــوی کله چې پیغام کې غبرګون نه وي نو پوهه شه چې مو ږ خپلې نیمګړتیاوې نه شو درک کولی په پایله کې پر مختګ هم نه شو کولی (٦۴۲:۴).

# Osgood and Schramm Model




د ماډلونو بنسټ د سي اې اوسګاډ په واسطه کېښودل شوی وو ولې کله چې نورو پوهانو د ده ماډل ته اصل بڼه ورکړه او په یو رښتیني ماډل یې واړاوو نو یې ارزښت پیداکړ دا کار په کال ۱۹۵۴ ز کې د ولبر شریم له خوا وړاندي شو، د ولبشریم ماډل له دې کبله له ډیر ارزښت پیدا کړ چې نوموړی ددغه ماډل په واسطه د اړیکو پخوانۍ څیره بدله کړه او نوي بلونونه یې پکې راوستل له دې وروسته ، بل ماډل د (Lenear) ماډل ده چې د وګړو د اشخاصو د خپلمنځي اړیکو په واضح کولو کې ډیر ارزښت لري ځکه دا ماډل دوه اړخیز اغیز چې د پیغامونو دتبادلې به وخت کې منځ ته راځي روښانوي ، هغه اړخونه ، زاوې او اصول تر غور لاندې نیسي چې د تبادلې او انتقال په وخت کې یو له بل سره نژدې کوي له دې مخکې نورو عالمانو دې موضوع ته ډیره توجه نه نه وه کړې نو له همدې کبله دا ماډل داړیکو په وخت کې د پیغام په روښانه کولو کې موثر وبلل شو چې فعلا هم د نړۍ په مختلفو پوهنتونو کې له دې ماډل څخه پوره ګټه اخستل کیږي ، په پورته شکل کې تاسو د دې ماډل په اړه په غور فکر کولی شی .

Major Characteristics

د شريم ماډل لاندي عناصر ننګوي .

پيغام ورکونکی: (Encoder)

په دې ماډل کې ســـړي ته دا معلومات نه کيږي چې په څه ډول سره پيغام ليږل کيږي په دې معنی چې څنګه ليږلی شم خپل پيغام تر نورو ورسوم په بل عبارت د پيغام ليږلو وســيلې يې نه دي واضــح کړې چې په کوم ځای کې څه ډول ، له کوم لوري زه خپل پيغام تر نورو ورســوم کوم الفاظ او کلمات وکاروم ، پيغام ورکونکی ،پيغام په ځانګړو الفاظو اوکلماتو کې ځاي پر ځاي کوي او هدف وړ خلکو ته ته يې اســتوې ي، ، البته دې خبرې ته په پام سره ، کوم پيغام چې استول کيږي بايد ټول شرايط يې وسنجول شي څو له کړاو او بې پايلې غبرګون سره مخ نه شي او کله چې چمتوشي بايد له ځانه لاندې پوښتنې وپوښتي چې !.

آيا د پيغام د ليږلو لپاره مناسب ، الفاظ ،کلمات ، اوزمينه ، همدغه دي که نه ؟.

که پورته شرايط برابر نه وي نو ضروري ده چې لار بدله کړي .

**پيغام**: (Message)

پيغام هغو خبرو ته ويل کيږي چې ويونکی يې اوريدونکي ته وايي. هر پيغام د بيان لپاره يوه ځانګړي اصول لري.

پيغام بايد د ساده او آسانې ژبې پر مټ وړاندي شي څو چې د پيغام اوريدونکي يا مخاطب ته د پوهېدا وړ وي که پيغام داسې وي چې مخاط ب پرې پوهه نه شي نو زموږ ټولې هڅې له هيڅ سره مساوي دي .

**اخستونکي**: (Decoder)

د پيغام اوريدونکي ، کس، ګروپ يا ډلې ته اخســـتونکي وايي. د پيغام ورکونکي او اخســـتونکي تر منځ د ارتباطي مهارتونو همغږي د اړيکو په اســانتيا او موثريت کې

پوره مرسته کوي ځومره چې دوی سره همغږي ، هم ژبي ، هم مسلکه او هم عمره وي ممکن اغیز یې یو پر بل ډیر وي .

### ژباړونکی: (Interpreter)

کله چې Encoder یا پیغام ورکونکی کوم پیغام لیږدوي موصول کننده یا اخستونکی یې په خپله ژبه په خپلو الفاظو کې په مناسبه بڼه ځانته آسانوي، په دې مانا چې دغه پیغام په آسانو الفاظو کې ځای پر ځای کوي او وروسته هغه پیغام په ساده الفاظو کې بیرته Encoder ته لیږي او د پیغام په تړاو خپل نظریات سره تبادله کوي چې په پایله کې دواړه سره همغږي کیږي او د موضوع پایله ښه لاس ته راځي .

### غبرګون: (Feedback)

موثرې اړیکې هغه ارتباطي عمل دی چې د منبع او هدف تر منځ ټینګیږي او متقابل عمل ته یې د غبرګون عمل ویل کیږي په اړیکو کې غبرګون یا جوابي پیغام ډیر ستر رول لوبوي ، په بل عبارت د انساني ژوند ټول کړه ، وړه ، په غبرکون پورې تړلي دي ، که غبرکون نه وي ممکن تور سپین ، روا ناروا خواږه اوترخه سره توپیر او بیل نه کړی شو. مثلا کله چې تاسو یو ملګري ته خط لیږی او هغه په ځواب کې تاسو ته ځوابي لیک در استوي ستاسو د لیک دغه ځواب ته په حقیقت کې غبرګون یا جوابي پیغام ویل کیږي ، که په تلیفونکې له کورنۍ ، دوستانو ... خبرې کوی هغوی ځواب ورکوي په اصل کې د دوي ځواب غبرګون دی .

د دې ماډل ځانګړتیاوې :

۱: مثب اړخونه په لاندي ډول دي.

د شریم دغه ماډل د ارتباط دوه طرفه عمل وړاندي کوي.

دوه طرفه اړیکې د دوو کسانو یا د یو کوچني ګروپ څخه تشکیل وي.

په دوه طرفه اړيکو کې پيغام ورکونکی او پيغام اخيســتونکی داسي دي لکه يو بل ته چې مخامخ وي او هغوی د يو بل په خبره ځای پوهوي .

د شريم په ماډل کې د غبرګون عنصرهم شامل دی چې د هغه په واسطه د يوې مسئلې نتيجه په اسانۍ سره لاس راځي.(۸۵:۳)

**۲: د دغه ماډل نيمګړتياوي په لاندي ډول دي.**

دغـه مـاډل کې پيغـام ورکونکی اړ دی چې د پيغام ورکولو يا ليږلو څخه وړاندي ، يو مناسب وخت او ځای په نظر کې ولري.

پـه دغـه ډول ، مـاډل کې مخاطب نه شي کولای چې د پيغام ورکونکي د څيرې حـالـت او اغيزې وګورې (تشــخيص يي کړي) چې لـه دې کبله



David Berlo

کیـدای شي  اړیکې  غیر موثرې  یـا بې گټې  شي ځکه ځیره د انســـان د
حالاتو څرگندونه کوي .

کـه چیرتـه د دوه اړخیزو اړیکو  پـه بهیر کې د اړیکو دواړه خواوې د یو  او بل
خبرو  تـه  پـام  ونه  کړي نو د اړیکو د غیر موثریت  زمینه  مســـاعدیږي چې
ممکن پایله یې هیڅ شي . ۳۸۷:۳)

## د لینیر او انټریکټیو ماډل

Linear & interactive Model

د نورو ماډلونو په نسـبت دا ماډل شـیان په اسانه ډول وړاندې کوي او سړی کولی
شي ډیر ژر د یوې موضوع تل ته ورسیږي ، ځکه هرڅه په وضاحت سره بیانوي .
د ده په وینا :
د هر ډول شي یـا خیـال ازســـتـازیتوب کونکي شي تـه نمونـه یـا مـاډل ویل کیږي.
نوموړی زیاتوي
د یوې پیښې یا یو شي په منظم ډول وړاندي کولو ته ماډل ویل کیږي.
دلینر ماډل  یو داسي ماډل  اړیکې په اسانه بڼه وړانډي کوي.
دغه ډول ماډل د ارتباطي ماډل د ساتلو لپاره مهم  معلومات  برابروي ، په ارتباطي
عمـل کې د پیښـــېدونکو خنډونو وضـــعیت وړاندي کوي، دغه ماډل اســـاســـآ د(
Shanoon and Weaver's)  د ماډل یوه بڼه ده کوم چې د پیغام، چینل او د پیغام
پـه اړه خبرې کوي ولې لـه هغـه څخـه څه کمزوری دی نو ځکه د هغه ځای نه شي
نیولی . دا یې هم  شکل .

Diagram of Linear Model of Communication




Qualities of Linear Model

ځانګړتیاوي په لاندي ډول دي(۳۴۵:۳)(Linear Model)

**۱:** د لینیر مـاډل یو ابتدایي ماډل دی چې د ارتباطي چارو او په هغه پوریې د تړاو لرونکو برخو د روښـانولو لپاره جوړ شـوی چې د اړیکو د ټینګولو په وخت کې یې روښانوي. ا و لاندې نیمګړتیاوې لري .

* د لینیر په ماډل کې د پیغام د ردولو عنصر نشته .

* د لینیر پـه ماډل کې د اړیکو حالت او پس منظر نه دی واضح شوی .

* د لینیر مـاډل د ډلـه ییز اړیکو لپـاره نـه شــو کارولی یعنې له دې حالت څخه نیمګړی دی .

* د لینیر په ماډل کې د ارتباط عمل یو اړخیز ده.

* د لینیر پـه مـاډل کې د مخـاطـب او پیغـام ورکونکي تر منځ واټن ډیر زیات وي، نو بناّ د ماخذ او مخاطب د وضــعیت په اړه هم معلومات نه کیږي.

* د لینیر مـاډل یو ســاده او بســیط مـاډل دی، د اړیکو پیچلتیا نه شي روښانولی.
* د لینیر ماډل د ارتباط عمل په ســاکن ډول سره ښــکاره کوي.
* د لینیر ماډل یو ترغیبي عمل دی.

***د لینیر د ماډل بله بڼه :*** موږ مخکې ویلي وو چې د اړیکو په وســیله موږ دلرغونو انسـانانو کړنې راتلونکي نسـل ته وړاندې کوو و د مشرـانوله تجربو څخه سالمه ګټه اخلو دا ماډل هم د وروسـته کسـانو له خوا داسې پالل شوی چې د مشرانو کړنې یې سرته رسولې دي .

Interactive Model

اینټرکټیو ماډل په اصل کې د لینیر ماډل یو پر مختللی بڼه ده.

Qualities of Interactive Model

د لینیر د ماډل په دغه پرمختللي بڼه کې څه ښــیګڼې او بد ګڼې شــتون لري چې په لاندي توګه دي

* پـه دغـه مـاډل کې د ارتبـاط عمـل پـه دوه اړخیزه توګـه کارول کیږي.
* په دغه ماډل کې د ځوابي غبرګون عنصرــ هم شــتون لري.
* دغه ماډل ارتباطي عمل په ډیر ساده شکل سره وړاندي کوي.

د دې ماډل دیاګرام یا شکل په لاندې ډول دی

د کانورګینس ماډل :

د اړیکو د بیلابیلو ماډلونو لـه وړو برخو څخـه یو مکمل ارتباطي ماډل په مختلفو بڼو جوړ شوی چې convergence ماډل په نوم یادیږي .

**کانور جینس ماډل ځانګړتیاوي په لاندې توګه دی :**

- په اړیکو پورې د مربوطو ټولو شیانو بیانول.
- اړیکې یو پیچلی عمل دی.
- غبرګون یې مسلسل دی.
- د منبع او اخستونکي دواړو ( دوطرفه ) خواوو رضایت .
- یو جامع (هر اړخیز) ماډل دی .




- ارتباطي پس منظر لري.
- د ټولنې هره برخه پکې شامله ده .

دغه ماډل د اړیکوبیلابیل حالتونه او اړتیاوی بیانوی .

## د ماډلونو ګټې او موخې

**Objectives & Benefits of the Model**

داړیکو عالمانو ډیری کارونه د ضرورت د پوره کولو لپاره منځ ته راوړي دي ، خو د ځینو پوهانو د له منځه تلو او د وخت له تیریو وروســـته یې نیمګړتیاوې پیداکړې دي چې له ده وروسته نورو علماوو هغه نیمګړتیا پوره کړې او یا یې هم د ده لاره

پرې ایښې ده ، ولې بیا یې هم کارونه دستایلو دي کیدی شي نیمګړتیاوې او مختلفې ځانګړتیاوې ولري خو تر هغه ځایه چې د ټولنې ضرورت پرې رفعه کیږي باید کار ترې واخستل شي ،نو له همدې کبله ما هم د ماډلونو په ښیګړو او ستونزو باندې لنډ بحث کړی هیله ده چې مناسبه ګټه ترې پورته کړی او له دې وروسته که کوم به دې وتونید چې په دې اړه معلومات را ټول او ټولنې ته یې وړاندې کړي دا به لا ښه شي ، موږ تر دې ځایه یو څه کر کړی دی هیله ده چې ستاسو مشکلات حل کړی شي .

**د ماډل ګټې او موخې په لاندې توګه دي:**

- ماډلونه پیچلی واقعیتونه ، حقایق او نظریات په اسانه بڼه واضح کوي .
- یو ماډل ، د ماډل توکي ، عناصر ، د هغوی تر منځ اړیکی او د پیغمام معنی تشریح کوي .
- ماډل له محصلانو سره د اصطلاحاتو په آسانتیا کې مرسته کوي .
- ماډل دمختلفو شیانو په اړه د وضاحت په ورکولو کې مرسته کوي ، ځکه چې ماډل دشیانو اړوند معلومات په اغېزمن ډول سره وړاندې کوي .
- د یو ماډل موخه او مقصد په نوې بڼه د نظریاتو مطالعه کول دي .

اوس راځو د اړیکو د ماډلونو په عناصرو غړیږو چې پوهانو څه ډول ښود لي او تشریح کړي دي ، د یادونې وړده چې د هر ماډل عالم په خپل وخت کې د ضرورت په اساس په زړه پورې کار کړی او د هغه نظر له ده وروسته نورو عالمانو څیړلی او یو څه زیاتونې یې په کې کړې دي .

د نړۍ د ارتباطاتو د علم د مشهورې ډکشنرۍ (A Dictionary of Communication and Media studies) مؤلفین هر یو Mr. Hill او Mr. Watson له نظره د ارتباط مهم عناصر عبارت دي له (6: 6).

| | |
|---|---|
| پيغام | Message |
| پيغام لېږونکی | Source of sender |
| د پيغام لېږلو وسيله | Medium or Channel |
| پيغام اخېستونکی | Destinattion or Target or Receiver |
| د پيغام اغېز يا اثر | Fed Back or effect |

مگر د Communication Models کتاب مؤلفين او د ارتباط ماهرين Denis Mc Qauil هغه او Seven Windahl په خپل اثر کې د ارتباط عناصر په لاندې توگه معرفي کوي:

پيغام، پيغام لېږونکی، د پيغام ليږلو وسيله، (چينل) پيغام اخيستونکی، د پيغام اغېز (اثر) او ټول هغه وسايل چې په هغه سره د ارتباط عمل سرته رسيږي، (14: 10)

د اړيکو په هکله له مختلفو تعريفونو ارزښت او معلوماتو څخه وروسته د ښه وضاحت لپاره د ارتباطاتو د ماهرين کلاوډ شنن (Claude Shannon) او وران ويور (Warren Weaver) هغه عمومي ماډل چې په 1947 کال کې يې د The Mathematical Theory.

Communicationتر عنوان لاندې خپور کړ، په دقت او غور يې لوستل ،هر محصل ته په کار دي

او س اړيکو په مخ کې پر پرتو خنډونو کار کوو چې پوهه شو چې کوم اساسي خنډونه د اړيکو په مخ کې پراته دي .

### د اړیکو اساسي خنډونه (Communication Barriers)

یو ویشــتمه پیړۍ د عصرـیت ، برمختگ ،تکنالوژي او ســاینس پیړۍ ده انســانانو دژوند ټول ســـهولتونه دځان لپاره برابر کړي ، خو له دې اســـانتیاوو سره ،سره ، تر منځ یې دومره کړاوونـه زیـات شـــوي چې په ح کولو انســـان نه بلکه یوازې خدای رسیږي ، ځکه ځواکمنو هیوادونو دغریبو انسانانو د اقتصاد غواوې را ولوشلې او لا لگیا دي لوشي یې ، او د بیرته پاتې نړۍ تر منځ د جنگ جگړو او ورور وژنې اور تود کړی نه پریږدي چې ارام ژوند ولري ، دسورې عراق، یمن ، افغانستان ، ایران ، لیبیا ، پـاکســـتـان ، او اوکراین جگړې هغـه نـاخوالې دي چې موږ په مختلفو نومونو پکې سوزیږو . سره له دې ټولو مسایلو سره بیاهم دانسان ژوند په اړیکو پورې تړلی او له دې پرته ژوند نیمگړی دی ، خو د اړیکو په ټینگولو کې هم داسې کړاوونه شته چې پوهانو یې د حل لپاره لارې موندلې او موږیې باید تعقیب کړو .

کله چې یوه منبع (شـخص، ډله، اداره....) وغواړي چې خپل پیغام نورو ته ورسوي، حتماً له یوې وسیلې څخه کار اخلي، ځکه چې پرته له کومې وسیلې د پیغام رسول ناممکن دي.

کله چې یو فکر، عقیده، نظریه، معلومات یا اطلاعات نورو انســانانو ته رســوو، نو د سرچینې او اخېســـتونکي (Recievers) تر منځ یو تلســـل منځ ته راځي، چې د دوی دواړو معلومات افکار او عقاید سره تبادله شي، نو د دوی تر منځ د افکارو، عقایدو، معلومـاتو د تبـادلې لپـاره یوې وســـیلې تـه ضرورت پیـداکیږي، چې بـاید کار ترې واخلي. هغه مهمې وسیلې چې د دوی تر منځ اړیکې او تسلسل ټینگوي عبارت دی له (له ژبې ، اشــارو علامو ، څیرې او تحریر او همدارنگه د ډله ییزو اړیکو وســایل لکه رادیو، انټرنیټ، تلویزیون، مطبوعات او ددې وسـایلو کومك کوونکي وسایل لکه تیلیفون، سینما......) او نورو څخه .

که چېرې د انســـانانو تر منځ د اړیکو وســـایل نه وي موجود ،نو ارتباط له یو ځای څخـه بل ځای ته ســـحت او ناممکن دی، او کله چې د اړیکو وســـایل ولرو، نو بیا ضروري دا ده چې پیغام ولېږل شي، باید وپوښـــتل شي، چې ایا پیغام اخېســـتونکي پیغام کټ مټ اخېستی دی؟

هغه څه یې درك کړي دي چې په پیغام کې نغښتي او اصلي هدف و او که له کړاو سره مخامخ شوی دی؟!.

دا معلومه او ثابته خبره ده، چې انســـان غواړي خپل پیغام کټ مټ بل انســـان ته نقـل کړي، یعنې غواړي چې خپـل افکـار، نظریـات، عقـایـد، معلومـات او پوهـه پـه منظمه توګه انتقال کړي او مقابل شخص له اغېز لاندې راولي او هغه له خپل ذهن او نظریاتو سره همغږي کړي، خو دا ډېر مشـــکل او ســـخت کار دی، هیڅ امکان نه لري چې یو انسـان خپل افکار او نظریات سل په سلو کې په نورو ومني، ځکه الله ج ټولو انسانانو ته یو ډول ذهن، شکل او ذکاوت نه دی ورکړی.

د انســـانانو نفسيــ غوښـــتنې او خواهشـــات یو ډول نه دي او همدا رنګه د نړۍ او هېواد پـه کچـه مختلف تحرکـات، تنظیمونـه ډلې، ټپلې او ټولنې پـه خپل منځ کې سره همغږي نه دي . او هم فکري، عقیدوي ټکرې او د ژوند اقتصـــادي حالت هغه څـه دي، چې د انســـاني نړۍ تر منځ یې لـه پیل څخه تر ننه پورې کش مکش جوړ کړي او د اړیکو پـه منځ کې یې لوی لوی کړنګونـه او درزونـه جوړ کړي او لا یې جوړوي.

ددې لپاره چې د ارتباط پر وړاند په خنډونو باندې ښه پوه شو، نو یې په مفصل ډول په ګوته کوو.

### د اړیکو پر وړاندې پراته خنډونه:

اړیکه د یوه تســـلســـل نوم ده چې د پیغام لېږ دوونکي او تر لاســـه کوونکي تر منځ تېنګیږي ، اړیکه هغه وخت اغېزمنه وي چې د دې مســـلســـلو اړیکو ترمنځ خنډ نه

وي موجود،يعنې دپيغام مفهوم اثر داســې ترسره شي چې لېږدوونکی يې غواړي ، دا هغه وخت امکان لري چې د دې سلسلې هره کړۍ خپل منځي ربط ولري ، يعنې د پيغام بنه ، د پيغام وسيله او د پيغام د ترلاسه کوونکي خپل منځی ارتباط وي ، په دې برخه کې د خنډونو د را پيدا کېدو له امله نه اړيکه تکميل کېدای شي اونه هم اغيز شيندي نو اړينه ده چې د اړيکو پر مخ کې پر ، پرتو خنډونو يو نظر واچوو.

دلتـه لـه رســنيز خنـډ څخه موخه هغه غير مطلوب عمل ده چې د پيغام لېږونکي څخه پيل او د پيغام تر لاسـه کوونکي پورې د دې تسلسل په جريان کې داسې واقع شي چې د دواړو ترمنځ طبعي يـا رواني اړيکـه زيان منه کړي او پيغام په موثر ډول خپل هدف ته ونه رسيږي

او علماوو په لاندې ډولونو ويشلي دي .

**۱ـ تخنيکي خنډونه :** (Technical Noise)

**۲ـ چاپېر يالي خنډونه :** (Environmental Noise)

**۳ـ عضوي خنډونه:(** دبدن دغړو نيمگړتيا ) خنډونه ( Physiological Impairment N)

**۴ـ مفهومي خنډونه :** ( دکلمو معنی او مفهوم ) خنډونه (Semantic N)

**۵ـ نحوي خنډونه :** ( دژبې استعمال طرز ) (Syntactical)

**٦ـ تنظيمي خنډونه** : (Organizational N)

**۷ـ کلتوري خنډونه** :( cultural N)

**۸ـ رواني خنډونه** : Physiological noise)

**۹ـ طبعي خنډونه** :

## ۱ـ تخنیکي خنډونه :

د نني وخت ساینسي اختراعاتو لکه تلیفون ، ټلي پرنټر، فا کس ، وایرلېس ، موبایل ، راډیو ، تلوېزیون انټرنټ او نور هغه څه دي چې فاصلې يې ختمې کړې اوخلک يې یو بـل تـه نېږدې کړي ، ولې بیـا هم دغـه اختراعـات پـه خپـل ځـان کې بعضـــې مجبوریتونـه او نیمګړتیـاوې لري ، لکـه د تلوېزیون د خرابېـدلو لـه املـه د ادارې یا ســـتاســـو پیغام خپل منزل ته له رســـېدو پاتې کیږي ، د ټیلي پرېنټراو تلوېزیون په وســیله د پیغام رســول د برق د نه شــتون او یا هم د کومې بلې خرابتیا له امله چې اصل پیغام ځای ته نه رسیږي .

داسې هم ممکنه ده چېرته چې موږ او تاسې اوسېږو هغه سیمه د راډیو ا، تلوېزیون او انټرنټ د پوښښ له ساحې څخه د باندې وي ، په دې ډول مونږ ویلی شو چې د تخنیکي خنـډونو لـه املـه یو پیغـام خپل منزل ته په وخت ونه رســـید چې دا ډول ستونزې تخنیکي خنډ بللی شو.

## ۲- چـاپېریـالي خنـډونــه : Environmental (Noise).

هغو خارجي خنډونوته ویل کیږي چې د شـــاوخوا چاپېریال له امله را منځته شـــوي وي په دې چې یو خارجي عامل وتوانیږي چې زموږ خبرې ګډې وډې کړي .

مثال: په صـنف کې د درس پرمهال د ځینو محصیلینو له خوا په لوړغږ خبرې کول چې د اسـتاد د غږ یا درس پروړاندې خنډ جوړوي ، په هوټل یا بازار کې د مخاطب خبرې په درست ډول نه اورېدل کیږي یا د مو ټرو او الوتکو د شور او ځوږ له امله که موږ د یو او بل خبرې نه اورو همدغه چاپیریالي خنډ بلل کیږي

## ۳ـــ عضــوي (بدني) خنډونه:( Physiological Impairment Noise ) .

روغ او ســالم صــحت د خدای لوی نعمت دی ، په شــته نړۍ کې لوی خدای ډېر داسې انسـانان پيداکړي چې د بدن د ځينو غړو له شتون څخه محروم دي لکه په غوږونو کوڼ والی ، د ژبې ګونګوالی ، توتلـه والی او نور چې پـه موثرډول اړيکې نه شي ټينګولی . مثلاً ، کاڼه خلک د يو سالم انسـان په شان پيغام نه شي اخيستی ، هغه خلک چې د ژبې کلالت لري په خبرو يې ســړی ســم نه پوهيږي چې دې ډول نيمګړتياوو ته په اړيکو کې عضـــوي خنډونه وايي چې زموږ په ټولنه کې ډېر دي او دولت ورته د ژوند او ښوونې هيڅ زمينه نه ده مساعده کړې .

## ۴ـ مفهومي خنډونه ( Semantic Nose)

د کليمو د معنی او مفهوم په برخه کې هم کله کله ځينې ســتونزې را پيدا کيږي چې پـه دې ډول مفهومي خنـډونه رامنځ ته کيږي ، مثلاً :داســې ژبه چې د کومې ځانګړې ډلې لپاره وي ، يا په کوم بل هېواد کې ويل کيږي ، او يا هم د کوم ځانګړي مسـلک په اړه وي ، پدې کې د فني او مسلکي اصطلاحاتو استعمالول په عامو خلکو کې ســتونزه زيږوي که يو ډاکټر مريض ته طبي اصــطلاحات کاروي ممکن مريض ډېر کم پوهه شي ، همدارنګه د نورو مسـلکونو پوهان که عاموخلکوته مسلکي الفاظ کـاروي نو ډېری خلـک بـه ، لويي ســـتونزې ولري چې دې تـه پوهـانو د مفهومي خنډونو نوم ورکړی دی .

يو ځل په ۱۳۹۴ کال کې ديو ملګري وراره زما اطاق ته راغی ماته يې وويل استاده ! (ګوندوران شته )؟

زه حيران شوم ، ما ځواب ورکړ نه ګرانه !

هلک لاړ زه سمدستي پورته شوم او تره ته يې ورغلم (شاهين استاد ته) پوښتنه مې ترې وکړه چې ، شــاهينه ګوندوران څه شي ته وايي هغه پوهه شــه او وې ويل جار

اســتاده ! مرچکو ته وايي ! ما ورته وويل زموږ اطاق کې مرچک ښــه ډېر دي ظالمه سم پښتون راليږه .؟

لـه دې قيصـــې څخه مې موخه د ســيمو دعادي ژبو تفاوت دی دهېواد په ډيرو سيموکې ساده شيان مختلف نومونه لري لکه انار انګوري ، رومي بانجان پا مضور ...

نو لازمـه ده چې په ســاده او عاميانه ژبه خبرې وکړو چې مقابل طرف پرې پوهه کړو، پـه همـدې ډول د تنظيمونو او نړيوالو ســازمـانونو د نومونو مخففـات لکـه ( NASA) چې د فضـــايې څېړنې نړيواله اداره يعنې ( National Aeronautics and space Administrative) لـدې ډول ســتونزو څخـه د خلاصي لپاره اړينه ده چې لېږدوونکی دې تـه پـام وکړي چې کوم مفهوم او معنی د ده په ذهن کې ده ، هغه پيغام د پيغام ترلاسه کوونکي په ذهن کې هم وي .

( Ambiguity بې معنی کليمې ) کـارول د اړيکو او پيغـامونو د لېږد پروړانـدې خنډونه جوړوي .

## ۵- ژبني خنډونه (Syntactical Noise).

د رسـنيو د متخصـيصـينو(مسـلک پوهانو) په اند ډېرکم خلک له دې حقيقت څخه خبردي چې د لېږد پـه برخـه کې ژبـه ډېره موثره ده ، ولې کلـه کلـه ډېره مضرـه اوخطرناکه هم وي .

هره ژبـه د ويلو يو جلا ترکيـب لري پـه دې معنې پـه جملو کې د کليمو دځـايولو ځانګړی طرز او طريقه که په اصـولي ډول ونه کاريږي او ،مخاطب نا بلده وي نو پريشانه کيږي ,مونږ بايد د خلکو په ژبه خبرې وکړو ساده ، واضح او خلص وغږيږو نو دا ستونزه له منځه تللی شي .

## ۶- تنظیمي خنډونه :

د مرحوم پوهـانـد هـالـه لـه قوله چې ویل به یي : (ځومره چې په یو هېواد کې ډلې ټپلې زیاتې وي په همغه کچه د همدې هېواد مرکزي دولت ضـــعیف او په داخل کې د پردیو د لاس وهنو له لاســه د خدای په مصـــیبت ککړ او له مختلفو کړاوونو سره به مخا مخ وي ). ځکه خو ټول غربیان د نړۍ د بیرته پاتې هېوادونو په تجزیه کولو ، د ګوندونو په جوړولو ، پاللو او تشـــویقولو مصرـــوف دي د اســـلا.مي نړۍ دهېوادونو تر منځ یي اوربل کړی ټول یي یو بل ته دښمنان ګرځولي دي.

لـه دې څخـه یي موخه داده چې د هدف وړ ټولنې د ارام ســـا وانخلي ، او دد وی موخې چې داسـلامي هېوادونو ټوټه کول او له منځه تلل او دهغوی د شـتمنیو لاس ته راوړل دي ترلاســـه کړي .او هم د دغه هیو ادونه د ځواکمن مرکزي حکومت او دولت څښـتنان نه شي او بالاخره دوی ته محتاج او د دوی لاس پوڅی وي. یو دبل په مقابل کې یي پاروي ، هڅوي یي ، تقویه کوي یي ، موخو ته یې زیان رسوي ، سره جنګوي یي تر هغه وخته چې د دوی اصل موخه لاس ته نه وي راغلې .

نو پـه همدې اســـاس د ډیرو تنظیمونو دتګلارو د نه شـــتون له کبله هم کله کله ټولنې یو لـه بـل سره اړیکې نه شي ټینګولی لکه په تیرو وختونو کې ختیځ او لوېدیځ جرمني ، اوســـنۍ شـــمالي او جنوبي کوریـاوې اویاهم لکه د برما دمســـلمانانو او بودایـانو تر منځ لانجې اویـا هم دپښـــتون قوم یه ملا د ډیورنډ لعنتي کرښـــه چې دپښـــتنو د وژنې ، زورونې او بربادي ســـبب ګرځېدلې ده پنجابیانو دپښـــتنو په شتمنیو څټونه وکړل او دوی هره ورځ وژل کیږي .

## ۷- کلتوري خنډونه (Cultural Noise).

د نړۍ په ټولو هېوادونو کې هره ټولنه ځانګړي دودونه، رواج او رسمونه لري او ملي کلتور د یوه ملـت د جوړونکیو قومونو لـه خوا په یوه اوږده زماني واټن کې جوړیږي

،ګډې مادي او معنوي کلتوري نښــې رامنځته کوي او يوه ملت ته داســې ځانګړنې وربښي چې له نورو ملتونو څخه پرې بېليږي. (10: 16.)

ټولنــه هېڅکلــه لــه خپــل کلتور څخه دباندې نشيــ وتلی او بې کچې مينه او علاقه ورسره لري، نو لــه دې املــه چې کلــه کوم پيغــام لېږونکی چاته پيغام لېږي، بايد د ټولنې کلتوري اوعقيدوي ارزښتونه جدي په نظر کې ونيسي، چې يې پيغام په ټولنه مثبت اغېز ولري او که چېرته دپيغام د ټولنې له عقيدوي او کلتوري بنســټونو سره خلاف وي،نو نــه يواځې دا چې پيغــام به يې رد شي، بلکې له جدي غبرګون سره به مخامخ کيږي او د نفرت په ســترګه ورته کتل کيږي. لکه په اوســنيو وختونو کې دخــارجي قواوو لــه خوا د مېرمنو تلاشي کول او پلټــل، څرنګــه چې د ښــځو پلټل په افغاني دود کې يوه ناوړه عمل ګڼل کيږي، نو ځکه ورځ په ورځ د خارجيانو په مقابل کې د افغانانو نفرتونه راپاريږي، همدا رنګه نور داسې عوامل چې د عقيدې اوکلتور خلاف وي، لکــه د نر لــه سره نکــاح، د ښــځې لــه ښــځې سره نکــاح، لوڅ بې حيــا تصــويرونه، د قران ســوځول او يا په ټوپك د قرآن ويشــتل دا ټول هغه څه دي، چې د غرب په مقابل کې د ټول اهل اســـلام پيروان راپارولي او ورځ په ورځ يې د دوی په مقابل کې نفرت زياتيږي.

بلکه ځينې کارونه خو دانســانيت له چوکاټه هم وتي دي لکه له سپي سره نکاح ... نور

پــه رســـنيز ډګر کې کلتوري خنــډونــه او يــا رواجونه ، ډېر تاثير لري ، هر هېواد او ســـيمــه لــه يو بله جلا کلتور او ثقافت لري ، بلکې په يوه هېواد کې د يوې ســـيمې کلتور له بې سيمې سره هم ځينې توپيرلري .

مثلاَ: کــه پــه مزار ، کــابل او جاغوري کې ښــځه موټر موټروچلوي عيب نه ګڼل کيږي ولې که دا کار په خوست ،پکتيا او ياهم پکتيکا کې وشي خلک به هک پک او مختلفې تبصرې به کوي ، سپکې سپورې به وايی .

نو موږ کـه لـه چاسره خبرې کوو باید د هغې ســیمې کلتوري اړخ کلک په نظر کې ونیسو او هغه وخت به زمونږ پیغام موثر وي چې د هغې سیمې له کلتور او رواج سره په ټکر کې نه وي . کلتوري خنډونه وار له مخه موجود (preconceived) وي ، له ټولنې را ټوکېدلي نه تسلیمېدونکي وي چې پیغام اخستونکې Receiver د پیغام ترلاسه کولو ته نه پرېږدي چې د ټولنې د دودونو خلاف کار وکړي .

کلتور دټولنې هغـه هنداره ده چې د ټولنې ټول خلک په کې خپل ځان ســینګاروي ،پـه زرګونو کلونو کې تشــکیلیږي ، او لـه منځـه تلـل یې هم زرګونـه کلونه زیار ته ضرورت لري .

## ۸ـ رواني خنډونه (Physiological Noise)

د رواني خنډونو بڼه له نورو خنډونو څخه جلا والی لري ، دلته پیغام خپل هدف ته رسیږي مګر پیغام تر لاسه کوونکی له پیغام څخه هدف نه شي تر لاسه کولای او په پوهېدو کې ورته ستونزې وي او یاهم هغه مطلب نه ترې اخلي چې د پیغام لیږونکي اصـل مقصـد وي او یا هم (Receiver ) دکوم بل علت کبله د پیغام لیدل ، لوسـتل ،او ، اورېدلو ته زړه تنګي کیږي .اصــلا له پیغام څخه مطلب نه شي اخســتی ، د منبع موخـه یو څـه او دی بـل څـه حس کوي او په لاندې حالاتو کې را منځ ته کیږي .

۱ـ د تجربې ډګر(Field of experience).

۲ـ ذهني پس منظر( Frame of Reference).

**۱ـ د تجرتې ډګر** (Field of experience) :

کـه چېرې د پیغـام لیږونکي او تر لاســه کوونکي پـه تجربـه ، علم او مطـالعـه کې همغږي نـه وي نو دا په رســنیز ډګر کې د رواني خنډونو په برخه کې یو لوی خنډ دی ، یو ســاینس پوه د نیوټن په قوانینو لېکچر ورکوي او پر وړاندې یې نالوســتي کسـان ناست دي نو پدې صورت کې رسنیز بهیر ناکام دی خو بر عکس که چېرې

د کېميا استاد د کېميا په صنف کې درس ورکړي نو دا رسونه به بريالۍ وي ځکه چې د دواړو ترمنځ همغږي ده او يو هدف لري .

که شيخ زايد پوهنتون د ژوزناليزم او عامه اړيکو د پوهنځي په اول صنف کې د اړيکو داساساتو په هکله درس وي محصلان سره له دې چې تجربه نه لري ولې بياهم داستاد له خولې په داسې ډول درس زده کوي چې خپل مشکل پرې حل کړي ، که ستونزه ولري سمدستي پوښتنه مطرح کوي او استاد ځواب ورکوي ، سره له دې استاد دمحصلانو ټولو پوښتنو ته ځواب وايي ولې بياهم ستونزې وي ځکه چې دمحصلانو تجربه نسبت استاد ته په دې هکله ډيره کمه ده .

## ۲ـ ذهني پس منظر (Frame of reference).

د اړيکو په برخه کې يو بل مهم خنډ چې اکثره يې پروړاندې واقع کيږي هغه له ذهني پس منظر څخه وي .

**ذهني پس منظر يعنې څه ؟**

د انسان هغه ذهني تصور چې ديوشي ،يا مسلې په اړه يي په ذهن کې لري ، ذهني پس منظر بلل کيږي.

يا ديو شي په اړه د انسان ذهني انځور او ياد داشت ذهني پس منظر بلل کيږي.

يا په بل عبارت د يو شخص په فکر کې موجود تصوير ،احساس او تصور ته ذهني پس منظرويل کيږي .

اړيکې يوازې په هغه صورت کې بريالۍ وي چې د پيغام لېږونکي اوپيغام اخستونکي ذهني پس منظر يو شان وي ،.

له دې څخه موخه داده چې پيغام لېږونکی هرشي ته د خپل فکر له زاوې څخه گوري ، که تاسې يو چاته ووايې چې د فيل په اړه تصور وکړئ نو دا اړيکه به هلته ممکن يا کاميابه وي که چېرې هغه فيل له نيږدې ليدلی وي نو پوه به شي ، چې يو لو ی حيوان دی، لوی لوی غوږونه ، يو اوږد خړتم اوځانگړی غږ لري ، مگر که

چېرې هغـه فيـل نـه وي ليـدلي هر څومره يې چې وپوهوې دی دفيـل پـه اړه يو روښانه تصور نه شي کولی ، په همدې ډول د مالګې تصور هغه څوک کولی شي چې مـالګـه يې خوړلې وي ، ذهني پس منظر يـا فرېم اف ريفرېنس د اړيکو پـه نړۍ کې ډېر ارزښت لري .

په هېواد کې رشـوت او فسـاد عام شوی دی قضيان ، مامورين او څارنوالان رشوت خوري، خلك کړوي او د خلکو مسايل نه حلوي، په نتيجه کې ټول خلك ورته د نفرت په سترګه ګوري.

دغه رشوت اخېستنه يو ه ذهني ستونزه ده، کله چې څوك د پوليس يا څارنوال نوم اخلي فوراً يې رشـوت په ذهن کې ګرځي، خصوصاً په اوسنيو حالاتو کې هغه مسايل چې عـامـه افکارو باندې اغېز لري ژر خلك راپاروي او دټولنې د دودونو خلاف وي، لکه په غير نظامي خلکو د امريکاياتو بمباري، د عامه خلکو وژنه او داسې نور...کله چې خلك د خارجي قواوو نوم واوري، نو عامه وژنه او ځورونه يې په ذهن کې ګرځي او د خارجيانو په مقابل کې د ټولنې نفرت پارېږي چې او دې ته ورته مســـايلو ته د فکر لارې يا (انداز فکر)او يا هم ذهني پس منظر وايي.

او دا هم بـايد په ياد ولرو، چې هيڅ امکان نه لري، د يوې ادارې او د پوليســـو ټول منسـوبين يا د محکمې ټول قاضـيان او څارنوالان دې رشوت خواره وي، کېدای شي د دوی په منځ کې ډير هوښـــيار، نېك او ځيرك خلك وي، ټولنې ته په ډېره عالي او لوړه درجـه کـار وکړي. هېواد او ټولنې تـه ډير وفادار وي، خو د دوی په منځ کې د بدو عناصرو له کبله د دوی نوم د خلکو په ذهن کې داســـې معرفي شـــوی چې په اورېدو يې ذهن ســمدســتي غبرګون ښــيي او د نوم په اورېدو سره يې په ذهن کې نفرت پيدا کيږي.

د اړيکو ځينو پوهـانو د عمرونو تفـاوت او تجربـه هم د ارتباط په لار کې خنډ بللی دی.

مثلاَ ی: که یو شپاړس کلن هلک که نا بغه هم شي ، ښې خبرې وکړي ، د موضوع پـه اړه قوي دلایـل وړانـدې کړي ، د زیـات عمر خلـک د ده پـه قابلیت اعتراف نه کوي او همدا به وایې چې پرونی ماشـوم دی ، دی یې اوس مونږ ته را زده کوي بې تجربې دی .

## ۹ـ طبعي خنډونه :

کله چې یو پیغام خپل هدف ته ونه رسېږي نو معلومه خبره ده چې پیغام لېږونکی هم خپل هدف نه شي ترلاسـه کولی ، مثلاَ: که تا کوم ملګري ته لیک واسـتاوه ، تا چې ملګري تـه کوم پیغـام ورلېږلی ، کـه خط چېرتـه ورک شي او ترملګري د ونـه رسېږي نو ملګری به ستا پیغام درک نه کړای شي .

یا کوم اســتاد خپلو شــاګردانو ته درس په دومره ټیټ غږ تدریس کوي چې غږ یې ترټولو زده کوونکو ونه رسـېږي نو امکان نلري چې دی خپل مفهوم تردوی ورسـوي او هغوی پوه یې کړي .

د اړیکې دا ټول خنډونه طبعي دي چې له امله یې پیغام ترمنزله سـم نه رسـیږي او یاهم بېخي نه لېګل کیږي .

د اړیکې په خنډونو کې یو بل خنډ هم شـــتون لري چې د اړیکو په اصـــطلاح کې د اړیکې د وسـیلې شور ( Channel Noise) ورته ویل کیږي ، مثلاَ : پرتلویزیون کې د خبرو پرمهال شـور د تلفون سېت د خرابوالي له امله شور ، د دروازې شور ، د موټر شور او داسې نورستاسې د اړیکې پروړاندې خنډ جوړېدای شي .




**✱ شور** (Noise)

شـــور د ارتبـاط پـه تینګولو کې یو خنـډ دی، ځکـه چې د خبرو، معلوماتو او یا نورو خپرونو د اوریدلو په وخت کې که څوك وغږیږي یا ماشــومان شـور جوړ کړي یا په نږدې سیمه کې دموټرو غږ او شور وي، نو موږ خبر، معلومات او یا بل پروګرام سم او دقیق نه شـــو اوریدلی، چې دا په خپله د ارتباط په ټنیګولو کې خلل او خنډ دی.

تاسو وګورئ چې کله په ځینو غونډو، مجلسونو یا

کنفرانسـونو کې چارواکي خبرې کوي او ناسـت خلك شور جوړ کړي، نو د هغو اواز سم نه اورېدل کیږي، ځکه چې د خلکو شور او زور د هغو د اواز په اوریدو کې خنډ وي او موږ نه شو کولای چې هغه پیغام او یا معلومات سم دقیق واورو ، چې د دغه مشـــکل د حل لپاره کله، کله پروګرام د دوهم ځل لپاره تکراروي، چې د تلویزیون، راډیو...او نورو وسایلو اورېدونکي پوره معلومات حاصل کړي.

د اړیکې په وخت کې د شـــور له امله د پیغام پروراندې خنډ را پیدا کیږي ، د دې خنـډونو د له منځه وړلو لپاره با تجربه پیغام لیږونکی د خپل پیغام اړینې برخې بیا تکراروي چې دې عمـل تـه په انګریزي ژبه کې ( Redundancy Technique) ویل

کیږي ، پدې سره اورېدونکي هغه برخې چې د شوراو خرابتیا له امله نه وه اورېدلې بیاېې اوري او ګوري ، چې ښه مثال یې رادیو یا تلویزیون خبرونه دي چې په اخرکې د مهمو خبرونو پایله وړاندې کیږي چې لویه ګټه یې شاید برق په اخر کې راغلی وي او یاهم څوک په اخر کې خبرونه تعقب کړي نو د خبرونو خلاصه اوري اوله تکرار څخه تېرشوی پیغام ترلاسه کوي.

**د اواز لنډه فاصله (Limited Voice Range)**

په طبیعي مشکلاتو کې لومړی شکل د انسان د اواز محدوېدل دي. هغه وخت چې د اواز د لوړېدو او لرې رسېدو وسایل نه و، لکه لوډسپیکر...نو یو انسان به په ممبر درېده او خلکو ته به یې وینا او خطاب کاوه، خو غږ به یې تر نږدې کسانو رسېده او لرې خلکو به هیڅ نه اورېده او که به یې واورېده هغه هم ډیر ټیټ اوضعیف و، نو د پیغام دغلطي او یا غلط فهمۍ امکان ډېر و او انسان نه شو کولی، چې خپل افکار، نظریات، معلومات او اطلاعات کټ مټ په یو ځل ډیرو کسانو ته ورنقل کړي، چې ددې مشکل د حل لپاره انسانانو له زحمتونو، تجربو او کړاوونو وروته وکولی شول چې ایمفلي فایر او لوډسپیکرونه جوړ کړي، چې دا مشکل له منځه یوسي، چې نن ورځ په اکثرو جوماتونو، مختلفو غونډو او محفلونو کې له دې وسایلو څخه کار اخېستل کیږي.

**فاصله (Distance)**

دوهم طبعي خنډ، چې انسان یې د ارتباطي نړۍ په ډګر کې له مشکل سره مخامخ کړی، هغه فاصله ده، چې د نړۍ د لویو وچو هېوادونو، سمتونو، ولایتونو، کلیو، بانډو او خلکو په منځ کې موجود دي.

کله چې انسان له وړو بانډو راکوز شو او ټولنیز ښاري ژوند یې پیل کړو، نو یې د پیغامونو د رسولو ضرورت محسوس کړ او هم د خپل ضرورت د رفع کولو او د هدف د لاس ته راوړلو لپاره پلی سفر پیل کړ، هڅه یې وکړه چې موټر جوړ کړي، الو

تکې جوړې کړي او ژر هدف ته ورسـيږي، مګر بيا يې هم قناعت حاصـل نه شـو، ضروريات اوغوښـتنې يې ډېرې شوې او دعالمانو په وينا (چې ضرورت د ايجاد مور ده) خپلو غوښـتنو مجبور کړ، چې دخپلو مشـکلاتو د حل لپاره د داسـې وسـايلو د لاس تـه راوړلو کوښـښ پيـل کړي، چې يې په برکت او مټ وکولی شي خپل افکار، نظريات، عقايد او غوښتنې په لږ وخت کې په ښه منظمه توګه خپل مدنظر کس او ټولنې ته ورسوي.
نو د څو پېړيو کړاوونو، مشـکلاتو او خپړو لګولو وروسـته وتوانېد، چې تيليفون، ټيلي پرنټر، ټيلي فاکس، راديو، تلويزيون، مبايل او د نړۍ عصرـي ترينه وسـيله انټرنيټ اختراع کړي، دا دی نن د نړۍ پـه هر کونج کې چې نـاسـت وي کولی شي لـه هر ځای څخه په څو ثانيو کې معلومات او اطلاعات راټول کړي، خلکو ته يې ورکړې او حتی د کمرې په وسـيله خپل ځان ورته وښـيي اوهغه هم وګوري او ددې وسـايلو د ايجاد او اختراع له برکته د ارتباطاتو په منځ کې مهم خنډ چې فاصـله وه د تل لپاره له مخې لېرې شـوه او هغه لويه پراخه نړۍ چې په لس ګونو کلونو او مياشتې به يې د يو هدف د لاس ته راوړلو لپاره مزل کاوه د خپلو مغزو او تفکر په نتيجه کې د يو کلي په شان سره راغونډ کړه.
انسان کولی شي په څو ثانيو کې د نړۍ له ګوټ ، ګوټ څخه په زړه پورې د علاقې او خوښې وړ مواد راټول او خپل هدف لاس ته راوړي او له هغې نړۍ څخه يونړيوال کلی (Global Village) جوړ کړي.
سره لـه پورتـه نـادرو اختراعـاتو، او تکنـالوژيکي ايجاداتو بيا هم د ارتباط په ټينګونو کې کړاوونه او خنډونه شـته، ځکه انسـاني نفس غوښـتنې انسان دومره لېونی کړی چې کله، کله د خپلو نفسيـ خواهشاتو لپاره د بل په حق پښه ږدي، نه پريږدي چې د انسـانانو تر منځ ارتباط په منظم ډول قايم شي. انسـان ددې هدف لپاره داسـې وسايل کشف کړي، چې د ارتباط د نيولو په وخت کې مزاحم قواوې له يوې سيمې

څخه تیریږي، نو هیڅ برقي وســایل کار نه کوي، دا او دې ته ورته نور ډېر وســایل شته چې مزاحمت پیدا کوي، د تلویزیون او راډیو پروگرامونو دخپرولو په وخت کې مخـالف گروپونـه یاحکومتونه مختلف پرازیت خپروي، چې د اواز د خپروي، چې د اواز اوریدو یا د تصــویر په انتقالولو کې مشــکل جوړ کړي او اورېدونکي یا کتونکي ونه شي کولای چې په ښه توگه یې واوري.

## مذهب اوعقاید (Religion and Believes)

لوی خـدای ج چې کله ادم علیه الســلام پیدا کړ، نو د هغه د لارښــوونې لپاره یې لارښــود کتاب (صــحیفې) هم راولېږلې، چې دی او اولاده یې د خدای ج په قانون عمل وکړي په دنیا کې هوسا ژوند او د اخرت لپاره یې کښت وگرځوي. له ادم علیه السـلام څخه تر اخري پیغمبر حضرـت محمدصلی الله علیه وسلم پورې الله ج چې هر پیغمبر رالېږلی، نو یې ورسره الهي قـانون رالېږلی او یا یې ورته امر کړی، چې له ده نه مخکې پیغمبر په کتاب عمل وکړي، الله ج په خپلو پیغمبرانو سل صحیفې او څلور لوی کتابونه (تورات، انجیل، زبور او قران) د انسانانو د لارښوونې لپاره رالېږلي، چې اخري پیغمبر نه راځي او دځمکې په سر له ټولو دینونو بهتر او افضل دین اسلام دی، ځکه چې خدای ج په خپله وایي :

(ان الذین عندالله اسـلام) ژباړه: په رښــتیا سره د خدای ج په نزد بهتر دین اســلام دی.

همدارنگه په حجة الوداع کې خدای ج د قران اخري ایتونه په حضرــت مصــطفی صلی الله علیه وسلم باندې نازل کړل، چې

**(الْيَوْمَ أَكْمَلْتُ لَكُمْ دِينَكُمْ وَأَتْمَمْتُ عَلَيْكُمْ نِعْمَتِي وَرَضِيتُ لَكُمُ الإِسْلاَمَ دِينًا)**

ژباړه: نن مې تاسو ته دین کامل کړ او خپل نعمت (اسلام او قرآن) مې په تاسو تمام کړ او تاسو مې راضي کړئ، چې اسلام ستاسو دین دی.

مگر سره له دې هم انســانانو د خپلو نفسيــ غوښــتنو د پوره کولو لپاره د مختلفو مـذهبونو د پيروي لا رغوره کړې، ځوك د لمر، ځوك د بوتانو، ځوك د ســپوږمۍ او ځینې بيا د اور عبادت کوي، ځوك عيســايان دي، ځوك هندوان، سـكان، بودايان او ځوك د حيواناتو عبادت کوي. حال دا چې دې ډول انســانانو ته الله ج 1431 کاله مخکې اعلان کړی دی، چې (راوړئ تاسو په شان د قرآن که رښتيا صادق يئ)

د ځمکې په سر د مختلفو مذهبونو او مختلفو عقايدو پيروي کول د انسانانو تر منځ د ارتباطاتو په ټينګولو کې مختلف کړاوونه او خنډونه پيدا کړي، چې له منځه وړل يې ډېر لوی او له ستونزو ډك كار دی اهل تشيع، اهل سنت والحديث دواړه ځانونه مسلمانان بولي، مگر يو له بل سره كلك اختلافات لري، يو د بل پر ضد له هيڅ ډول قتـل، وژنې او ځورونې ځخـه سر نـه غړوي، وګورئ عراق يو اســلامي هېواد دی، د سنيانو او شيعه ګانوتر منځ ځومره تضاد دی، همدارنګه ايران کې د سنيانو او شيعه ګانو تر منځ پاکسـتان هم همدا رنګه او داسـې نور مذهب خو پرېږده، عيسـايان له مســلمانانو سره، کاتو ليکان له عيســايانو سره، ارتودوکس، بوداييزم، هندوييزم او داسې نور ددې ټولو مذاهبو پيروان يو له بل سره دومره ژور او عميق اختلاف لري، چې دير کلونه غواړي، چې د دوی تر منځ اختلاف لرې کړل شي.

په نړۍ کې د انســاني ټولنو تر منځ دا ډول خنډونه، توپيرونه او ختلافات د ارتباط په ټينګولو کې مزاحمت پيدا کوي. د هرې ډلې يا مذهب مبلغين کوشش کوي چې خپله ټولنه له تبليغ او وعظ لاندې ونيسي، چې ددوی اهداف لاس ته راوړل شي، په دې لار کې مضرــ خلـك د نړۍ د کليســاوو پـايـان دي، چې د خپلو ټولنو خلك يې تېرايسـتلي او دحق منلو ته يې نه پرېږدي، همېش احساساتي تبليغات کوي، چې د مختلفو ټولنو تر منځ د اختلاف په نتيجه کې هغه شـوم اهداف لاس ته راوړي، چې د يهودو ارمانونه پوره کړي. او په خپله هغه ناوړه اعمال سرته ورســوي چې په هيڅ

انسـاني چوکاټ کې ځای نلري لکه دښـځې له ښـځې ، د نر له نر اویا هم له حیوان سره نکاح، له ماشومانو سره جنسي تېری (بي بي سي (1388- 9- 27)

## سیاسي نظریات (Political Views)

لـه هغه خدایي نظام پرته چې د نړۍ انســانان یې د خپلو ګټولپاره پلي کوي او پر ټولنـه یې تطبیقوي اصــلي موخـه یي هغـه ســیاسي ، مـذهبي، کلتوري نظامي او اقتصــادي ګټې دي چې د مختلفو شــعارونو په غیږ کې یي نغښــتي وي او دغوړو اشـــعـارو پـه جـاموکې یې دخلکو پـه افکـارو کې دخلوي اودا کـار هم دملتو نو په ذهنونوکې په هېوادونو کې مختلفې سیاسي ډلې چې د خلکو له یو ځای کېدو څخه تشـکیل شـوي دي د خپل سـیاسي او عادي ژوند د ښېګنې لپاره مختلف اړخونه په نظر کې نیسي او د خپلو سیاسي عقیدوي او ګوندي ګټو په خاطر مختلف نظریات لري او هره ډله د خپلو نظریاتو مطابق کار کوي، چې خپل ســیاسي اهداف لاس ته راوړي. وګورئ په وظلومو فلسـطینیانو داسرایلو ظلم او دټرمپ طرفداري ، دسورې دلکونو بې ګنا انسانانو وژنه د روسې او ټرمپ له لاسه د ډاکټر اشرف غني او ډاکټر عبدالله ترمنځ سـیاسي کش مکش او دهیواد اوسـنیي حلالات د ډاکټر عبدالله بې ځـایـه مبـارزه او د ټـاکنو پـه جریـان کې اړودوړ هغـه څه دي چې ځینې کړنې یې هېواد له ســیاسي رکود او بې ثباتي سره مخا مخ کوي چې حتی داســې وکیلانو سر راپورته کړ چې موږ هیڅ فکر نه کاوو چې دابه د ملي ګټو خلاف خلک وي .

دا ولې او د څه لپاره؟

دا ټول مختلف سیاسي ګوندونه او ډلې دي چې هره ډله یې کوښښ کوي، د هېواد پـه اداري چوکـاټ کې ځـان ځـای کړي او پـه پـایله کې خپل او یا دبادار ســیاسي نظریـات او غوښـــتنې مخ پـه وړانـدې بوزي او یـا هغه څوك دي ، چې غواړي خپل باداران خوشحاله. او د هغوی لپاره کار وکړي، حال دا چې افغانستان یوازې یو مشر او 34 د ولایتي شـورا مشرـانو ته ضرورت لري، که چېرته د ټاکنو هغه مصـارف چې

دوی یې مصرــفوي د هېواد د تعلیمي او علمي ســویې د لوړتیا او د بیا رغونې لپاره وکارول شي،څومره ګټوره به تمامه شي.
نو ویلی شــو چې همدا ســیاسي نظریات اوغوښــتنې دي چې د یو هېواد د وګړو، چارواکو، عوامو، حتی د دوو ورونو تر منځ خنډ پیدا کوي او د انساني ټولنې تر منځ زموږ ټول علمي او روشـنفکره قشر پوهیږي چې د هېواد د اوسنیو حالاتو لپاره څوك غوره او بهتر دی چې واك تـه ورســیږي؟ او زموږ لپـاره به هغه څه وکړي چې زموږ ضرورت دی او که نه؟ لکه زموږ دخارجه چارو وزیر او ډله یې ....

## اقتصادي حالات (Eccnonmics Condition)

د ټکنالوژۍ په نني عصرــ کې د اقتصــادي کړکېچونو اوتوپیرونو له کبله د نړۍ د وګړو او ملتونو تر منځ د ارتباط په نیولو او ټینګولو کې دومره زیات خنډونه موجود دي، چې هېڅ امکان نه لري، چې له منځه ولاړ شي، تر څو چې دا اقتصادي توپیرونه وي، نو دا خنـډونـه بـه موجود وي، ځکه د (نړیوال)کېدو نارې وهوونکي حکومتونه، امریکا او اروپا غواړي چې د نړۍ د غریبو هېوادونو د ملي شـتمنیو غواوې راولوشي او د خپلو اهدافو لپاره یې استعمال
کړي او ددې اهـدافو لپاره له خپلو نظامي وســایلو، پلانونو او پروګرامونو څخه کار اخلي، چې وکولی شي د خپلو اقتصـــادي پروګرامونو لپـاره د نړۍ د ببرتـه پـاتې هېوادونولکه عربي هېوادونه، افغانستان، د منځنۍ اسیا او همدا رنګه د افریقا هغه هېوادونه چې کافي زېرمې او ذخیرې لري، لاس ته راوړي.
څرنګـه چې د ځمکې په سر ټول انســانان یو ډول حقوق لري او باید د حکومتونو او سازمانونو له خوا ورته په یوه سترګه وکتل شي، چې وګړی په ارام او هوسا ډول ژوند وکړي لـه خپلو انســـاني حقوقوڅخـه ګټـه واخلي. خو د نړۍ د زبر ځواکونو او اقتصـادي مسـایلو له کبله یې احسـاسـات، فکر، عمل اوغوښـتنې ټول مختلف دي، ځکـه په غریبو هېوادونو کې خلك له لوږې مري په افریقا او بعضــې نورو هېوادونو

کې د خپـل اولاد روزۍ لپـاره کدايي او ســوال کوي، خپل اولاد د يوې ډوډۍ لپاره خرڅوي، حتی فحـاشــۍ او بـدلمنۍ تـه مجبوريږي، مګر پـه غربي او سرمايه دارو هېوادونو کې خلك له ډېرې مستۍ په لکونو ډالره د سياحت، فحاشۍ او لذت لپاره مصرفوي، الوتکې د سفرونو لپاره کاروي، غربيان د خپل ژوند د وسـايلو د انتقالولو لپـاره له اوښ، قچر او يا خره څخه کار اخلي او کله، کله دا هم نه وي، سرمايه داره ټولنې ډېرې اعلی زده کړې کوي. په سلو کې 99 يې باسواده دي. مختلف علمونه زده کوي، اتومي بمونـه لري، په بيليونونو ډالره د خپلو اهدافو د لاس ته راوړلو لپاره مصرفوي، مګر غريب هېوادونه له مرضـونو څخه ځان نه شي ساتلی، نور وسايل خو لا پرېږده اولاد يې مکتب نه پېژني، حتی له انساني اوليه توکو څخه هم محروم دي، نو څنګه به وکولی شو، چې غريبه ټولنه کې له سرمايه دارو ټولنو سره مقايسه کړو. نو ويلی شو چې کله کوم پيغام بې وزله ټولنو ته ورسيږي، نو اغېز به يې کټ مټ د مالدارو ټولنو په شـان نه وي، ځکه غريب فقط د خېټې او ژوند غم اخېستی، مالدار د ژوند په نورو سهولتونو پسې ګرځي. (14: 24، 25).

کـه چېرتـه د نړۍ بـازار کې د طلا قېمـت لوړ يـا ټيـټ شي، اغېز بـه يې په مالدارو کورنيو ډېر زيات وي، نســبت د غريبو ته او که چېرته خوراکي توکي ارزانه شي، نو اغېز به يې په غريبو کورنيو ډېر زيات وي نسبت مالدارو ته.

## د فکر ازادي او بنديزونه

د بيان ازادي د ځمکې په سر د هر انســان طبعي حق دی او بايد ورکړل شي، ځکه چې د نړۍ هېڅ ځواکمن تر اوســه نـه دی توانېـدلی، چې د خپـل ملـت د ارادو او اهدافو د لاس ته راوړلو لارې او د ضمير غږ بند کړي.

همـدا د بيـان ازادي ده، چې ډېر لوی زبر ځواکونـه يې مـات کړي او د مظلومـانو اوازونه يې اوچت کړي دي او د بدو کارو اعمال يې ټولنې ته رسـوا کړي، اګر که په دې لار کې ډېر سرونه قرباني شـوي، ډېرې وينې تويې شوي دي او اوس هم د نړۍ

پـه ګوټ، ګوټ کې د ځواکمنو په ضـــد دا کار روان دی او جاري به وي، ځکه چې انسـان د خدای ج یو داسـې مخلوق دی چې ضرور به خپل فکر، عقیده او احسـاس نورو ته اظهاروي او د زړه راز به ورسره شریکوي.

کله چې په ټولنه کې ازادي نه وي،نو د ارتباط په لار کې خنډ پیدا کیږي، ځکه چې په ډله ییزو ارتباطي وسایلو باندې د یوې ځانګړي ډلې حکمراني وي او دا وسایل به خاص د لالا او خان (چارواکي) د خولې خبرې کوي او د ملت د ضـمیر اواز او ارادو ته به هېڅ پام نه کوي. د حاکمې طبقې ناوړه اعمال به پټ ساتل کیږي، حقیقت به پټیږي او د عوامو په خولو به بالښــت کېښــودل کیږي په نتیجه کې عوامو ته هېڅ حق نـه ورکول کیږي او د یو حیوان پـه توګه ورڅخه ګټه اخیســـتل کیږي. نو عوام مجبور دي چې د حـاکمې طبقې په مقابل کې راپور ته شي، قرباني ورکړي، سرونه او وینې نظرانـه کړي زحمتونـه تېر کړي او پـه پـایلـه کې بـه حـاکم نظـام چې د دیکتـاتوري نظـام وي لـه منځـه وړي او عوامو ته دفکر او بیان ازادي ورکول کیږي ددې ښه مثال دپاکستان د پوځي ځواکمن جنرال پرویزمشرف نظام وو چې تر ۲۰۱۸ کال پورې اوس هم پښــتون ملت په اورکې ســوځیږی دمنظور پشــتون ،علي وزیر ملګري او د محکومو پښـــتنو پرلتونه ، مشرـــف چې اته 8 کاله یې په زور پاچاهي وکړه، ټول نظـام یې پـه خپله ګټه څرخاوه، حتی عدلي قوانین یې هم تغییر او تبدیل کړل، مګر بیا هم د پاکســـتان ملت او د عدلې قاضـــیانو،وکیلانو، د عوامو په ملاتړ وکولی شول چې په 2008 کال کې دده 8 کلن دیکتاتوري نظام له منځه یوسي او د جمهوریـت او ډیموکراســـۍ نظـام جوړ کړي او کـه چېرتـه په ټولنه کې د ډله ییزو رسـنیو لپاره ازادي وي، په اصـولي او قانوني چوکاټ کې په کار پیل وکړي، نو عوام او حکومت به یو له بل سره همغږي راضي او هر چاته به خپل حق رسیږي.

### تبلیغ (Propaganda):

تبليغ هم داړيکو په ټينګولوکې لوی خنډ دی ،ځکه سياسي ډلې او حکومتونه نـه غواړي چې دخپلو ټاکلو ګټو له لاس ته راوړلو لاس واخلي نو د خپلو موخو دلاس تـه راوړلو پـه خـاطر مختلف تبليغـات خپروي څو ټولنـه له اغيز لاندې راولي ، ددې لپـاره چې دتبليغـاتو په هکله کره معلومات تر لاســـه کړی نو د رسنۍ او ټولنې کتاب ته مراجعه وکړی څو په اساسي ډول پوهه شی.

تبليغ په اوســني دور کې هغه دوامداره عمل دی، چې د نړۍ هر هېواد يې د خپلو اهدافو د لاس ته راوړلو په خاطر اســتعمالوي او له 1842 کال څخه راوروســته په مختلفو ډولونو تعريف شوی دی چې د نمونې په ډول يې څو تعريفونه ليکو.

تبليغ د هغو مخفي سـازمانونو د نظرياتو او اصولو له خپرولو څخه عبارت دی، چې د حکومت له خوا د نفرت او کرکې په سترګه ورته کتل کيږي (19: 195، 194).

او همدا رنګه تبليغ، په ماهرانه ډول د رواني ســمبولونو او اهدافو درلودونکی دی، چې اورېدونکي (د هدف وړ کسان) له هغه څخه بې خبره وي. (21: 98).

يو کار پوه وايي چې: تبليغ داسې عمل ته وايي چې په مرسـته يې يو يا څو کسـان د يوې يا څو رسنيو په مرسته د خلکو په باور عقيده او کړه وړه له اغېز لاندې راولي.

نن ورځ تبليغ په ټولنه کې د منفي مفهوم په توګه اســتعماليږي او د نوم له اورېدو سره يې د خلکو پـه زړونو کې نفرت پيدا کيږي، چې اواز ته هم په همدې نظر کتل کيږي. تجـاران د خپلومـالونو د خرڅلاو لپـاره په ډله ييزو رســنيو کې په بېلا بېلو ډولونو تبليغ کوي چې دې ډول تبليغ ته تجارتي تبليغ وايي.

نديم الحسن (2008) په دې هکله ليکي: تبليغ اصلاً مثبت يا منفي نه وي، بلکې د ا يو ارتباطي تکتيك دی، چې ډله ييزې ارتباطي وسـيلې د خلکو رايې خپلو ټاکلو شويو اهدافو ته متوجه کوي.

د تبلیغ نړیوال ماهر (جوزف گوبلز) وایي: پروپاگند د دوه سرې تورې یا خنجر په شان دی ، که مبلغ دښمن پرې ونه وهي او و خت له لاسه ورکړي، دی په خپله له منځه ځي او خلك يې په تبليغ باور نه کوي او بالمقابل دښمن ورته پیاوړی کیږي. ځکه دده ټولې لارې اوچت او پټ رازونه ټولنې او دښمنانو ته ظاهريږي او دښمن يې په مقابل کې سنجیده او قوي پلان جوړوي او له منځه يې وړي. (14: 24، 25).
تبلیغ په دریو حالتونو کې پلي کیږي د افواه (اوازې) اساس په دروغو ولاړ وي، مثبت او منفي تبلیغ په ښه ژور فکر او سوچ تر سره کیږي.
اوازې اصلاً د حقایقو د پټولو او گډوډۍ لپاره استعمالیږي. که زموږ په هیواد کې خارجي توکیو ته ډېر ارزښت ورکول کیږي، که چېرته دا خبره عامه شي، چې په خارجي غوړیو کې د خنزیز وازده (غوړ) استعمال شوي،نو دا یو مثبته اوازه ده، ځکه چې د هغه په ځای به د هېواد داخلي تولید زیات شي، گټه به يې خپل دولت او ملت ته راشي نه خارجي هېواد ته او که دا ذکرشوې خبره حکومت هم ومني، نو دا خبره بیا په پروپاگند بدلیږي، نو په پای کې به خلك د خپل هېواد د تولید شوي توکي استعمالوي او ملي کمپنۍ به ښه عواید لاس ته راوړي. (4: 13)
ځینو پوهانو د اړیکو په اړه نوي لنډ خو تازه معلومات لیکلي چې د ماسټري د کچې له کتابونو څخه را اخستي ، هیله د ه چې له دې خپله علمي تشه ډکه کړی .

## داړیکوډولونه: (Types of Communication)

په بنسټیز ډول اړیکی په لاندی شپږوډولونوویشل کیږي:

۱- داخلي خپل منځي اړیکې (ځاني اړیکې ).

۲- خپل منځي اړیکې.

۳- دډلې یاگروف اړیکې.

۴- اضافي خپل منځي اړیکې.

۵- ټولنیزې اړیکې.

٦- رسنیزې اړیکې.

## الف- داخلي خپل منځي اړیکې (ځاني اړیکې):

داهغه اړیکې دي چې په خپله دشخص له خوا په قصدي یاغیرې قصدي ډول په غږیز،شفاهي یاغیرې شفاهي بڼورامنځ ته کیږي .

ټول انسانان داخلي خپل منځي اړیکو (ځاني اړیکو)سره تړاولري ځکه داد اړیکوبنسټیزه برخه جوړوي چې داړیکو نورډولونه اوبنې تري راوځي او دا د ټولو نورو اړیکو بنسټ دی ځکه چې دا اړیکې نیمګړې وی نو نورې اړیکې هم نیمګړې دی .

هغه تن چې دهغه داخلي خپلمنځي اړیکې (ځاني اړیکې )غښتلې او ګټورې وي دهغه نورې اړیکي هم پراخې اوغښتلي وي، په دغه ډول اړیکوکې داړیکې ټول اړین توکي شتون لري.

دبېلګې په ډول :که یوتن له خپل ځان سره خبرې کوي یا له ځان سره فکر کوي اویاهم یوشی خپل ذهن ته راولي ،نوپه دغوټولومواردوکې دهغه غوږونه اوسترګې دیوه لیږدونکي دنده پرمخ وړي چې پیغام دمیډیم یامنځګړي له لارې لیږي .

دغه منځګړی دهغه اعصابومرکزي سیستم دي چې ا ړوند پیغام د ناڅاپي انګېزې په بڼه وي اوورسته دغه پیغام ترلاسه کوونکي ته راځي چې، هغه انساني مغزدی.بیا معزهم غبرګون ښکاره کوي، چې دا ډول اړیکه په خپل ذات کې یوپوره ماډل اونمونه ده.

دپورتني بحث په پایله کې لاندې توکي او اصطلاحات بایدتوضیح شي :

**شفاهي** :(verbal)

دا له هغه کلماتوڅخه جوړ یا ورسره تړاولري چې خبرې پرې کیږی، د بیلګې په ډول که چېرې یوتن دشعر، ډرامې یاکومې لوبې الفاظ ،جمله او کرښې په ذهن

کې یاداښت کړي اوله ځانه سره يي ولولي ،دغه ډول اړیکو ته شـفاهي یا( Verbal)
اړیکه وايي.

**غیرې شفاهي:** (Non-verbal)

کله چې یوتن کې دیوه شـــی په اړه ځانګړی ډار او اندېښـــنه راپیداشي ، دغه ډول
اړیکو ته شفاهي اړیکې وايي.

**غږیز :** (verbal)

دا ډول اړیکې له بهرنی بیولوژیکي غږیدنې اوچاودنې عبارت دی چې په بې اختیاره
،فـوري اوقصـــــدي تـرکـیـب سره یـوځـای رامنځ تـه کیږي اوموخـه یی ترډیره
تشدداوخطرڅخه دځان ژغورنې لپاره د مرستې راجلبول دي.

## ب: خـپـل مـنـځـي اړیـکـې: ( Intra Personal Communication)

داهغـه اړیکې دي چې دوه یاله دووڅخه ډیرخلک یي په خپل منځ کې ټینګوي ،چې
داهم داړیکو یوه په زړه پورې بڼه ده چې راښکیل خلک پکې دیوبل نظرونه،ښه اوپه
اسانی سره درک کولای شـی .په دغه ډول اړیکو کی یوه ښه ځانګړتیا غبرګون دی
چی نبغ په نبغه دشخص له خوا رامنځ ته کیږي .

پـه دغـه ډول اړیکو کې داړیکو مـاډل ټولې برخې ،اړین رول ترسره کوي. دا اړیکی
ډیری وخت مخامخ وي نوځکه یوتن دبل تن له څیرې اوحرکاتو پوهیږي اوموضــوع
درک کوي.

## ج . اضـــافـي خـپـل مـنـځـي اړیـکـې:( extra personal communication)

داهغـه اړیکې دي چې پـه هغې کې چـاپېریـال غوره رول لوبوي. دبیلګې پـه ډول :
څوک له یوه غیرژوندي شي، لکه دیوال یاله خاموشـه ژوندې شیانو، لکه نباتاتو سره
غږیږي چې دي ډول اړیکوته اضافې خپل منځې اړیکې وایې .

## د . ټولیزې ( ډله ییزې ) اړیکې : ( Mass Communication)

داډول اړیکې ډېرې پراخې اړیکې دي چې په هغه کې ډېر مخاطبین برخه لري او دمخاطبینو دشمیرمعلومول پکې ناشونی وي . داهم داړیکو یواړین ډول دی چې له ټولیزورسنیو اووسیلو پرته ، امکان نلرې .

دغه ډول اړیکې د ورځپاڼې راډیو اویاتلویزیون ا انټرنټ له لاري ترسره کیږې، دا د اړیکو ترټولو ځواکمن ډول ده خوپه دي ډول اړیکوکې غبرګون ځنډنی وي.

د بیلګې په ډول : که چیرې یو ولسمشرـ خپله بیانیه ، د تلویزیون یا رادیو له لاري خپل ملت ته وړاندي کړي ، دغه ډول اړیکوته ټولیزي اړیکې وایې . داډول اړیکې او ویناوې د نړۍ ټولې جغرافیایي سیمې پرته له کومې ځانګړې او محدودې پولې اغېزمنوې خو غبرګون یې ژر نه معلومیږي .

## هـ - د ډلې یا ګروپ اړیکې : ( Group Communication)

داهغه اړیکې دې چې دخلکو ډلګي یاګروپونه پکې برخه لري.

د بیلګې په توګه : که چیرې یو تن د وګړو یوې ډلې ته خطاب کوي، یاهم ددوو ټولګیوترمنځ بحث او مناظره صورت نیسې ، دې ډول اړیکې ته د ډلې یا ګروپ اړیکې وایي.

### داړیکو تګلاره :

Procedure of Communication)(

داړیکو نیولوبهیرپه بنسټیزډول ، لاندې دوو شیانو پورې اړه لري .

- ✓ رمزاینبودنه (Encoding)
- ✓ رمزخلاصه ونه (Decoding)

## الف – رمزايښنودنه : (Encoding)

درمزايښودنې مانادادە چې، له مالوماتونه (اصلې ماده ) داړيکو له يوه سيستم څخه داړيکودوهم سيستم ته واړول شې .

د مالوماتو دغه اړول بايد دکوډونو او رمزونو په بڼه وې ، دغه کوډونه دســمبولونو، نښو ، ليکو ياخطونو په شکل کې وي چې پټه او ناڅرگنده مانا وړاندې کوي .

رمزايښودنه د **(جان فيسک )** په وينا : (( داله نښواو قواعدوڅخه جوړ دي ،دنښواو کوډونو د کارونې مفهوم او څرنگوالی څرگندوي چې څه ډول داکوډونه سره ترکيب شوي دي ، ترڅولاپيچلې پيغامونه رامنځته کړي )).

دکوډونودغـه نظـام بـايد داړونده ټولنې دغړوترمنځ گډ او تړلی وي.داړيکوبهير يې له لاندې شکل څخه په اسانۍ دپوهېدو وړ دی.




## ب ـ رمز خلاصونه:(Decoding)

دايو منل شوی حقيقت دی چې داړيکوبهيرنه شلېدونکی او تل جاري وي،ياني پای نه لري، ځکه که يو تن رمزاېښودنه کوي،نو بل تن يې رمز خلاصونه کوي.

درمز خلاصــونې مفهوم دادی چې،کلـه يو څوک رمزاېښــودنه وکړي؛ نو د پيغام ترلاسه کونکی يې دخپلې ذهني پوهې اوتجربې مطابق راژباړي. څومره چې په پيغام

کې رمزاسـانه اېښول شوی وي ،هغومره دتر لاسه کوونکي له خواپه اسانۍ دپوهېدو وړوي.

دلتـه اصـــلا موخـه هغـه معلومـات او اطلاعـات دي چې پیغام لیږونکي یې د یوې وسیلې له لارې غواړي پیغام اخستونکي ته په هغه ډول ورسوي څرنگه یې چې دی غواړي .

## د موثرو اړیکو ضرورت :

**موثرارتباط :**

هرڅومره چې پیغام دهدف وړ شـخص له طبعې سره برابر (Receiver Oriented) وي . هغومره به موثروي ، د اړیکو نیولو څخه هدف د ترلاســـه کوونکي په کردار او رویه کې بدلون راوستل دي ، په رویه کې تغیر د اړیکو د اثراتو نتیجه ده کله چې موږ کوم دکاندار ته ووایو چې مهرباني وکړه ماته یوه هندوانه راکړه ، نو ته د پیغام اخســتونکي په رویه کې بدلون راوســتل غواړې چې په نتیجه کې هغه تاته هندوانه درکړي که داسې وشي نو دې اړیکې ته موثره اړیکه ویل کیږي .

داسې اړیکه چې د پیغام ترلاسه کوونکي په رویه کې د پیغام لېږونکي د فکراو تصور مطابق بدلون رامنځ ته کړي موثرې اړیکې بلل کیږي .

**اغېزمنې اړیکې څنگه شونی ده :**

کله چې مونږ د موثرو اړیکو په هکله معلومات لولو نو له مونږ سره دا ســوال پیدا کیږي، چې موثره اړیکه څنگه شونې ده او د مقابل کس غوښتنه څه ده ؟

څنگه هغه را ماتولی شو؟

دکومو وسیلو له لارې کولی شو چې خبله موخه لاس ته راوړو؟

د ارتباطاتو په عمل کې د اړیکو د وسیلو د انتخاب په وخت کې باید لاندې ټکي په ذهن کې ولرو څو وکولی شو موخې ښې تر لاسه کړو.

### ۱ـ لاس رسی :

چاته چې پیغام لېږو باید د داسې وسیلې له لارې ولیږو چې دوی دې وسیلې ته لاس رسی ولري ،که چېرې مونږ د باغوانانو اومالدارانو لپاره اعلان په انګرېزۍ ورځپاڼه کې چاپ کړو نو زمونږ بزګربه هېڅ کله هم استفاده ترې ونه کړي او دا به هېڅ کله هم اغېزمنه اړیکه نه وي ځکه چې بزګر انګرېزي ورځپاڼې ته لاس رسی نه لري او که یې و لري پرې پوهېږي نه .

### ۲ـ توان :

د موثرو اړیکو لپاره دا هم اړینه ده ، چاته چې پیغام لېږل شوی او له کومې وسیلې لېږل شوی ،ایا دوی یې د اوریدلو او رانیولو توان لري او که نه ؟

مثلاً : یو اعلان له انټرېټ څخه یوازې لوستي طبقه لولي ، هغه چې انټرنېټ او کمپیوټر ته لاسرسی لري ګټه ترې پورته کولی شي دا شمیر زمونږ په هېواد کې ډېرکم ده خلک بې سواده دي خلک پوهه نه لري او نه پیاوړی اقتصاد. د دې دواړو علتونو له کبله هغوی له دې نعمت څخه محروم دي.

### ۳ـ ژبه :

داغېزمنو اړیکو لپاره د ژبې ټاکنه هم ډېره اړینه ده ،که چېرې د بدخشان ، کونړ ،او نورستان لېرې کلیو او بانډو ته کوم پیغام لېږل غواړو او په انګرېزي ، اردو چینایي او روسي ژبه یې خلکو ته ولیږو یا یې ولیکو نو یقیناً اړیکې ناکامې دي ځکه د دې سیمې خلک په پښتو ژبه سم نه پوهیږي نو په خارجی ژبه څنګه پوهه شي !.

همدارنګه که د لویې پکتیا د غرنیو سیمو خلکوته په انګریزي یا بله خارجي ژبه پیغام لیږو نو غلطي کوو ځکه د هرې سیمې خلکو ته باید د هغوی په ژبه پیغام ولیږل شي څو موثر تمام شي.

## ټولنيز اقتصادي اړخ :

کلـه چې مونږ وايو چې د موثرو اړيکو لپـاره زمونږ پيغام  بايد د اورېدونکو يا هدف وړ خلکو له طبعيت سره  برابر  او عيار  نه  وي . دا معنې لري چې ، پيغام لېږونکی د خپل اورېدونکي مزاج ، عمر، تجربه او د ده له ذهني برداشــت څخه خبر نه دی او ترې خبر وې يې  نو سمدستي  له اغېز لاندې راځي .

د پيغـام لېږونکي اړيکـه بايد  تل دوخت له  ټولو شرايطو سره برابره  وي . او لاندې ټکي کلک په نظر کې ونيسي .

۱ـ د ا ړيکو په وړاندې ټول پراته خنډونه بايد لرې کړي .

۲ـ د لېږد مناسبه وسيله يې انتخاب کړې وي .

۳ـ پيغام يې په ښه بڼه سره چمتوکړی وي.

۴ـ اړيکه دوه طرفه وي .

۵:د هدف  وړ ټولنې ضرورت ، مشـکلات ،عمر ، اقتصـاد او سـياسي حالات   ،پوهه او کلتورېې ښه ژور مطالعه کړی دی .

کله دې چې د پيغام تر لاســه کوونکی په علم ، تجربه ، او رويه کې مناســب بدلون راغی نو پوه شه چې اړيکه اغېزمنه ده او ستا پيغام به حتما ګټور تماميږي .

## د موثرو اړيکو اساسي شرايط:

د ډاکټر مهدي په وينا چې د پيغام تر لېږلو وروســته د پيغام د ناکامۍ يا کاميابۍ په اړه قضاوت يا وړاندوينه ستونزمنه ده خو تر يوه حده مونږ اندازه کولی شو چې ، د يوه پيغـام بريـاليتوب ترکومه بريده شــونی ده ،  له هغو  حالاتو او شرايطو څخه بـايـد خبر وو چې د اغېزمنو اړيکو لپـاره اړين دي اوپـه مټ يې بايد تر منزله پيغام ورسوو.

که چېرې دا حالات او شرايط په پام کې ولرو نو پوه شــه  چې ســتا پيغام ســتا د خوښې مطابق ورسېده او پايله به  يې هم ډېر په زړه پورې وي .

د موثرو اړیکو پــه اړه مې د مختلفو عــالمــانو علمي اثــار وکتــل او د هغو له مطالعې څخه مې لاندې ټکي په ذهن کې را غونډ کړل چې ستاسو حضورته یې وړاندې کوم

## ۱ـ د پیغام او توجه ترمنځ اړیکې :

که مونږ په لار، مجلس او صنف کې دومره په ټیټ اواز وغږیږو چې دوهم شخص زمونږ خبره وانه وري یا په داسې ژبه خبرې وکړو چې مخاطب پرې پوی نه شي نو مخاطب به هیڅکله مونږ ته متوجې نه شي او نه به مو خبره تاثیر وکړي .

که د رادیو له لارې څوک ســـتا پیغام وانه وري او یا خلک رادیو ونه لري ، نو ســـتا پیغام ضــایع کیږي ، که څوک کوم ماشــوم وګوري او ورته مسکی شي او ماشوم بل طرف ته ګوري نو د ده موسکا به په ماشوم هېڅ اغېز ونه کړي همداسې نور روابط هم در واخله .

## ۲ـ د پیغام او تجربې اړیکه :

په پیغام کې داسې کلمې ، تشبیهات او اصطلاحات کارول، چې له دې وړاندې اورېدونکو نوي تجربه کړي ؛ نو پیغام به غیر موثر وي له دې سره سره که چېرې پیغام د اورېدونکي له تجربې سره په ټکر کې وو ، نو پیغام به غېر موثر وي .

مثلاً : که یو ســـیاسي ګوند د خپل نمائنده په اړه داســـې خلکوته چې د دوی د نمائنده له کړو وړو څخه خبر وي ،دی ورته معلوم ، کردار او رفتار یې ورته معلوم وي داســـې خبرې وکړي چې د دې خلکو لــه تجروبو سره په ټکر کې وي نو خلک به هېڅ باور پرې ونه کړي ، که د دې سیمې د خلکو تجربه داوي چې کاندید یو بې ایمانه او خاین کس ده او ګوند یې دا اعلان وکړي چې فلانی کاندید ډېر صادق او ایمانداره سړی ده چې دا خبري به په خلکو کوم اغېز ونــه کړي ، ځکــه چې پیغــام د خلکو لــه تجربې سره پــه ټکرکې ده ځکــه زموږ نومــانــدان ټولو تــه معلوم دي چې موږ تــه یې هیڅ توره نــه ده کړې بلکې دملي ګټو خلاف ګامونه اخلي نو کله به هم وړ کسان دې ځوان ته رایه ورنه کړي .

پــه بل عبارت زموږ دپارلمان هغه وکیلان چې اوس اوس دملي ګټو په خلاف را پاڅېدلي او شــخصي ګټې پالي ، خبرې او وعدې به یې هیڅ کله افغان ملت غلط نه کړي بلکه د هغوی

په ضــد را وپاريږي او په مقابل کې به يې تونډ غبرګون وښـــيی ، ځکه چې د دوی وعدې اوشتون ملت تجربه کړ .

## ۳- د پيغام او شخصيت ترمنځ اړيکه :

زمونږ هر ګام او کار شـعوري وي اوکه غيرشـعوري ،زمونږ د يوې مهمې اړتيا پراســاس تر سره کيږي ، دکارونو دترسره کولو لپاره بايد يو داســې شـخص وي چې په ټولنه کې دباور وړوي ، دکـار وړتيا پکې وي ، د هغه کار توان ولري نو بيا يې پيغام په ټولنه کې منل کيږي او که چيرې د ده شــخصــيت او کړنې يو دبل خلاف وي نو يې پيغام هم په ټولنه کې غير موثر دی هســې وخت ضــايع کول دي ، ځکه ځينې خلک په ټولنه کې منفور او ضــعيف شــخصــيـت لري چې ټولنـه ترې نفرت کوي او هيڅکلـه يې پيغـام پر خلکو اغيز نه شي ښيندلی ، موږ يې په همدې وختونو کې په مختلفو سيموکې د قومونو په مشرانو کې ليدلی شــو چې په لوړ و چوکيو د ځينې کړيو له خوا د خپلو ګوندي ګټولپاره ګومارل شــوي خو پايله يې صـفر ده ځکه په هر قوم کې دنفوذ او رسـوخ خلک معلوم وي نو دشـخصـيت ، پيغام او مسوليت ترمنځ بايد يو تړاو موجود وي

## ۵- د پيغام او چاپيريال ترمنځ اړيکه :

د شـخصـيت د تکميل په خاطر ته په خپل پيغام کې په کومو کړنو چې تکيه کوې ، په دې برخـه کې اړينـه ده چې د اوريـدونکو يا مخاطبانو چا پيريال او حالات د دې اجازه ورکړي څـه چې تـه وړانـدې کړې ، که نه نو پيغام به مو بې اغيزې وي په دې معنی چې د پيغام دليږد لپاره بايد محيطي شرايط هم موزون وي که موزون نه وي نو موخه لاس ته نه شو رړی.

مثلاً : کـه وغواړې د هغو هيوادوالو لپـاره چې د روغتيـا او وزن مشــکل لري هغه وخت بريالی کېږي چې خلک پدې قانع کړې چې د جوا رو ډوډی د صــحت لپاره ګټوره غذاده بايد تاسـو يې اسـتعمال کړي ،او که جوار په مارکېټ کې نه وي نو سـتا خبره به ، بې ځايه وي ځکه لاس نه ورته کيږي .

يا زموږ اوسنی دولت کله کله داسې قوانين او اصول وضعه کړي چې په افغانستان کې يې پـه دې شرايطو کې عملي کول نـاممکن دي ، ځک ځينې کارونه امنيت او ځينې ضــميني شرايطو ته جدي اړتيا لري ، که د همدې کار لپاره امنيت او ضـمنی شرايط برابر نه وي نو

زموږ  کار هسې د وخت ضایع کول دي  ځکه داسې کار چې امنیت یې لازمي وي باید د امن فضا ورته مساعده شي .

په همدې ډول که ته د شخصیت جوړولو په داسې کړنو مصروف وې چې په ټولنه کې منفور وي کله به موخه ترلاسه نه کړې ، لکه شراب څښل ، بد اخلاقي نو په یوه مسلمانه ټولنه کې به  دا  ارمان خاورک ته یوسې ځکه د ټولنې اساسات دې مسایلو ته اجازه نه ورکوي  .

د دې ښه مثالونه په هندي چاپېریال او ټولنه کې شته ، په هند کې د زراعت د برخې پوهان په دې عقیده دي چې هلته د غواګانو زیات شمېر د هېواد په اقتصاد او خوراک اضافي بوج ده چې د  غواګانو په حلالولو سره ستونزه ترډېره بریده حل  کېدای شي  خو کړاو دادی چې څوک به هلته غوا حلاله کړي ؟ ځکه هلته غوا ته په هندي مذهب کې د مور په حیث کتل کیږي  د پوهانو دا استدلال به هېڅ ځای ونه نیسيـ ځکه چې په هندي چاپېریال کې هندوان غالب دي د غوا ذبح کولوته هېڅوک هم اجازه نه ورکوي  او دې کار ته  کله هم نه چمتو  .

یا که څوک دا نارې وهی چې باکستان یو اسلامي هیواد دی ممکن د نړۍ اسلامي هیوادونه او ټولنې یې ورسره ونه مني ،ځکه دوي په تیرو ۴۰ کلونو کې له اسلام څخه لنګه غواجوړه کړې  فقط ګټه ترې اخلي او د فوځ ټول اعمال یې د اسلام ضد دي  دنړۍ په سلګونو مسلمانان یې د خپلو پاکستاني کټو لپاره قرباني کړل  او لا دوام لري.

## ۶ـ د رسنیزو خنډونه  له منځه وړل  .

داچې په اړیکو کې خنډونه را منځ ته کیږي نو دحل لار هم لري چې باید د له منځه وړلو لباره یې هڅې وکړو .    له رسنیز خنډ څخه موخه هغه غیر مطلوب عمل ده چې د پیغام لیږونکي څخه پیل ، د تر پیغام اخستونکي پورې د  تسلسل په  مرحله کې داسې واقع  یا را منځ ته شي چې د دواړو ترمنځ طبعي یا رواني اړیکه له منځه یوسي  او پرې یې کړي  او پیغام په اغېز من ډول خپل هدف ته ونه رسېږي   د پیغام په جریان کې  یو خنډ ورته پیدا کړي  او په لاندې ډولونو دي .

## ۷ـ معنوي خنډونه:

دا خنډونه هغه وخت را پیدا کیږي چې پیغام ترلاسـه کوونکی د پیغام لېږونکي په ژبه ونه پوهېږي ، مثلاً : کـه چېرې چینایې هیئت خپل پیغام په چینایې ژبه بیانوي نو زمونږ خلک شـاید د چینایې هیئت پیغام درک نشيـ کړای او دا اړیکه ناکامیږي ، بلکه یو ترجمان به کاروي ، په همدې ډول کله چې زمونږ سـیاسیون کلیو بانډو ته ځي او وینا کوي نو وینا به یې هغـه وخت اغېزمنه وي چې د خلکو په ژبه ، د خلکو د ســويې ، علم ، عقل او شـــعور مطابق خبرې وکړي ، کنه غیر موثرې اړیکې دي .

لاندې شکل یې د ښه وضاحت لپاره وګورئ




له پورته شـکل څخه داسـې څرګندیږي چې د پیغام لېږونکي اوتر لاسـه کوونکي د دواړو تجربو ترمنځ همغږي موجوده ده ، څومره چې د لېږونکي او تر لاسـه کوونکي د تجربې ترمنځ فاصـله نسـبتاً کمه وي اړیکه هم دومره اغېزمنه وي، چې د فاصلې په دې زیاتوالي سره به پیغام همدومره بې اثره وي .

## ذهني پس منظر :(Frame of reference) .

د اړيکو پروانديې بل لوی رواني خنډ ذهني پس منظر( Frame of reference) ده ، له دې څخه هدف داده چې پيغام لېږونکی يوې پېښې يا ستونزې ته د خپل ديد له نظره ګوري او همدا شان پيغام تر لاسه کوونکی له خپل ديد او زاويې څخه ستونزې ته ګوري ا انګېري يې چې دا دواړه سره لوی توپيرکوي ، مثلاً: لاندينی شکل چې پيغام لېږونکی يې يوه




نقشه ګڼي خو پيغام اخيستونکی يې ګل او ځينې نورېې د ونې پاڼه تصور کوي .

۱ـ نقشه ( پيغام لېږونکی )

۲ـ ګل ( پيغام اخيستونکی )

۳ـ پاڼه ( پغام اخيستونکی )

له پورتنی شــکل څخه د ماخذ او منزل دواړو برداشــتونه بيل وو، په حقيقت کې د پيغام لېږونکي مقصـد مخاطب ته د خپلې ذهني نقشې پيغام ورکاوه چې ترمنځ يې همغږي نه وه موجوده او پيغام له ناکامۍ سره مخ شـــو ، د پيغام د برياليتوب راز يوازې د دواړو خواوو په همغږۍ کې ده .

## کلتوري او ټولنيز روايات :

په دې اړه مو مخکې هم معلومات وړاندې کړل ولې دلا ښــه پوهيدو لپاره ازم دی چې يو څه نور هم پرې ورزيات کړو .

د يوې ټولنې پـه ورځني ژونـد کې کلتور ځانګړی ، خورا ، ارزښـــت لري ، که چېرې پیغام لېږونکی د یوې ټولنې د عقیدې یا د دوی د رسم او رواج په خلاف کوم پیغام خپور کړي نو په هېڅ چابه ښـه ونه لګیږي اوناخوښي به څرګنده کړي ، پیغام خپل ارزښت له لاسه ورکوي او زموږ هڅه بې پایلې سر ته رسیږي .

مثلاً : پـه یوه اســلامي هېواد کې د کفري عقـایـدو لپاره تبلیغ کول او یاهم په یوه اسلامي او سنتي ټولنه کې د غیر شرعي مشروباتو ارزښت بیانول او دې لوري ته د خلکو رابللو پیغام به م=دومره موثرخلکو نه وي لکه په یوه داسې ټولنه باندې چې هلتـه شراب عام او ارزښـــت یې بیا ن کړی شي ځکه هلته یې خلک خوري ، ورسره عادي دي ، هیڅ ممانعت نشته .

د دوهمې نړیوالې جګړې پر مهـال امریکـا وړانـدې له دې چې جاپانې پوځیانو ته د وسلې پرځمکه کېښـدو ( د تسلیمېدو) ووايې د دوی کلتور او د جاپاني وګړو فکري بنه یې تر مطالعې او څېړنې لاندې ونیوله چې له دې څخه دوی ته دا په ډاګه شوه چې جاپاني وګړي هر څه قبلولی شي خو د خپل شـاه په خلاف یوه کلیمه هم نشي‌ـ زغملای ، نو کله چې دوی ته د تسـلیمېدو ویل کېدل نودا هم ورته وویل شـول چې له ماتې منلو وروسته به بیاهم د دوی ( جاپانیانو ) شهنشا به واک کې پاتې کیږي ، دې پیغام امریکایانوته ډېره ګټه ورسوله اودا یو بریالی پیغام وو.

په افغانستان کې دتیرو لسیزو په جګړو کې زموږ دښمنانو دشمال ، جنوب . پښتو ، فارسي .شعیه ، سني او تنظیمونو په نومونو سره وجنګول . او اوس هم ځینې خارجي کړۍ غواړي افغـانـان د وروروژنې اور تـه ور تېل وهي دهېواد په شـــمال ، شرق او جنوب کې یې ځینې کړۍ ګومـارلې دي څو ورڅخـه کـار واخلي دا کـار ځکه کوي چې دا تجربه په تیر کې کامیابه ثابته شوې او خلکو کار پرې کړی دی .

کله چې پیغام داسې ټولنې ته لېږل کیږي چې د هغوی دین ، مذهب ، کلتور، رسم او رواج بېل وي نولومړی د هغه سیمې د وګړو کلتور، رسم اورواج په نظر کې نیول

کیږي ، له همدي امله هېوادونه چې د نورو هېوادونو لپاره د هغوی په ژبه خپروني کوي ، د راديو يـا تلويزيون له لارې نو د هغه هېواد د پوهو خلکو خدمات تر لاســه کوي ، چې نشرــيات په داســې بڼه ترتيب شي چې تاثير يې ژور او با اغيزه  وي خو کـه معـامله برعکس وه که پرګرامونه څومره هم خوندور وي بې اثره به وي اود بلې ټولنې د خلکو لپاره به د قبول وړنه وي .

لنـډه داچې د پيغام لېږونکو او تر لاســه کوونکو تر منځ د کلتوري او ټولنيز ټکر له کبله پيغام له خنډ او ځنډ سره مخ کيږي ، ترڅو چې داستونزه هواره نه  شي موثره اړيکه ناشونې ده .

## د مخاطب د پوهې کچه :

پـه عربي ژبه کې معقوله ده چې (يکلم الناس على قدر عقولهم )  خلک دخپل عقل په اندازه خبرې کوي . ځکه ټول انسانان يو شان پوهه نه لري   هرچاسره بايد دهغه په سويه او ژبه خبرې وشي  که د پيغام تر لاسه کوونکي د عقل پېمانه محدوده وي يعنې د زده کړې کچه يې ټيټه وي اويا د پيغام د مفهوم په درک کې ستونزه ولري نوداهم د اړيکو پر وړاندې يو لوی خنډ او ستونزه ده که چېرې يو پيغام لېږونکی د يوه نـالوســتي سره دجمهوري نظام په باره کې خبرې کوي نو دا د هغه له ســويې لوړې خبرې دي ، پـه همـدې ډول کـه هغـه ته د پرمختللي زراعت د طريقو په اړه عالمانه پيغام ورکړي نو هغه به يې د خپلې کم علمۍ له امله رد کړي ، چې له امله بـه يې د مرجع او هـدف تر منځ همغږي رامنځ تـه نشيــ ، د دې خنډ د لرې کولو لپاره اړينه ده چې پيغام لېږونکی د خپل پيغام مفهوم له بېلابېلو زاويو لارو، اصـولو ا ژبو له لارې څخه وړاندې کړي او د څو کلماتو پر ځای بايد له تصــويرونو ، ډرامو او فلمونو په وسـيله پيغام ولېږدول شي ځکه په بې سـواده سـيمه کې داشـيان ښـه پايله لري.

## د اظهارولوانداز( Expression)

کله کله د پیغام لېږونکي د پیغام لېږلو بڼه یا تصـــورات له نورو چارو یا حالاتو سره اړخ نه لگوي چې له امله يې د پیغام لېږونکي فکر او هدف درک کول ستونزمن وي ،چې لـه امله يې اړیکه بې اثره کیږي او له ناکامۍ سره مخ کیږي ، د ارتباط تکمیل یوازې تر کلماتو پورې نـه دی محـدود ، پـدې برخـه کې لـه نورو حواســو هم گټـه اخیستی شو .

مونږ په خپلو حرکاتو او اشـارو سره هم یو څه بیانولی شـو، پدې شرط چې حرکت یا اشـــاره مو د پیغام له مفهوم سره برابره وي ، مثلاَ : که یو څوک د خوښـــۍ اظهار کوي خوپـه څېره يې د غم تـاثیرات وي نو مخـاطب به کله هم د سرچینې دا پیغام درک نه شي کړای چې دی خوشحاله ده .

نو د اړیکو د بریـا لپاره اړینه ده چې د پیغام لېږونکي د بیان او اظهار طرز له وخت او چاپیریال سره مطابقت ولري ، څو يې پایله ښه لاس ته را شي.

په درک کولو کې عدم توافق (Cognitive Dissonancy)

که پیغام لېږونکی مخاطب د سیگرېټوپرې ښو دوته را بولي چې سیگرېټ د صحت لپـاره زیـان لري نوکلـه کله مخاطب سره لدې چې په دې هر څه پوهېږي خو پیغام بې ارزښته ورته ښکاري ، دی د سگرېټو څکول پر ځای کار بولي او  د دې لپاره ډول ډول دلائل وړاندې کوي .

مثلاَ : لس کاله کیږي څکوم يې خو بیا روغ رمټ یم ، پدې سره وخت ښه تېریږي ، ســگرېټ د یوازیتوب په وخت کې انډیوال ده ............... داحالت د شــعور او عمـل د عدم مطابقت په نتیجه کې رامنځ ته کیږي چې د پیغام پر وړاندې یو خنډ ده کله چې مخاطب ته یو عمل سـم ښـکاره شي نو بیا د هغه قائلول د منبع لپاره او له عمله راگرزول یو ستونزمن کار  دی.

د شـعوري عدم مطابقت د وضـاحت لپاره پروفيسـور مهدي حسـن په خپل کتاب "ابلاغ عامه " کې ليکي :

پـدې برخـه کې پـه امريکـا کې يوه څېړنه وشـوه چې پکې له هغو خلکو سره مرکې وشـوې چې غوښـتل يې نوي موټر واخلي ، دې خلکو د موټرو له اخېسـتو وړاندې د ډېرو بېلا بېلو موټرو په هکله معومات راټول کړي وو. لدې وروسـته هغوی يو موټر واخېسـت ، د موټر له اخېسـتلو وړاندې به يې هر ډول اشـتهار لوسـتلو ، د هغه پر ځانگړتياوو به يې فکر کاوه مگر د موټر له اخېستو وروسته به يې يوازې د هغه موټر په اړه اشـتهار لوسـتلو چې ده د اخېسـتی وو، ځکه چې غوښتل يې چې خپله خوښه بر حقـه وښـايي او داهم امکان لري چې دې خلکوته معلومه وي چې د ده له موټر څخه نور قيمتي موټر هم موجود وو.

زموږ يو گاونډی چې اسـتاد دی او زوړ موټرسـايکل لري اولادونو يې څو ځله ورته وويل چې ! : پلاره نوی موټر سـايکل به درته واخلو پرې گرځه . خو پلار يې نه مني ځکه ده ته خپل موټرسايکل ډير گران دی او وايي چې زما خپل موټر سايکل ښه دی زما ملگری دی ، وفادار دی بې وفا يي نه راسره کوي .

**ژبه** :

د اړيکې لپاره ژبه ډېره مهمه ده ، له ژبې پرته بريالۍ اړيکه سـتونزمنه ده ژبه هغه وسـيله ده چې پيغام کټ مټ لېږدوي ، مثال که يو څوک داسـې يو چاته پيغام په انگريزي ژبـه لېږي چې د هغـه مورنۍ ژبـه پښـتو وي او هغه يوازې په همدې ژبه پوهېږي ، معلومه خبره ده چې پيغام تر لاسـه کوونکی به کله هم مقصد اومفهوم درک نه شي کړای ، په همدې ډول که سر چينه د مخاطب په ژبه بر لاسـې نه وي نو اړيکه به هم ناکامه وي ځکه چې پدې ډول سرچينه خپل پيغام او خبره په کامل او واضح ډول نه شي وړاندې کولی نو بنا اړيکې بې گټې شوې هيڅ اغيز يې ونه کړ.

**د اړيکو په برخه کې د ژبې د کارونې اصول:**

داچې انسـانان خپلې اړيکې په ژبو ټينګوي نو لازم دی چې يو څه اصـول په نظر کې ونيسي څو وکولی شي په ښه ډول يو له بل سره اړيکې وساتي .

داړيکو پوهانو مختلف مهم ټکي ددې کار لپاره ټاکلی ما دهغوی نظريات لوستلي او دهغوپه رڼاکې مې داسې يوڅه ليکلي چې درنو لوستونکوته په درد خوري اودادی ستاسو حضور ته يې وړاندې کوم هيله چې په مناسب ځای کې مناسب او کره کار ترې واخلی .

**۱ـ له اوږد والی ډډه کول :**

په دې عصري نړۍ کې د وخت ارزښت زيات شوی ، ډېری خلک د اوږدو ويناوو د او رېدو او عبارتونو د لوســتلو لپاره وخت نه لري ، نو اړينه ده چې خپلې خبرې يا پيغام په لنډ او جامع بڼه وړاندې کړئ څو خلک تنګ نه شی.

**۲ـ تړاو ( تسلسل) :**

د پيغام په برخه کې د ژبې کارول بايد په داسې بڼه وي چې افکار، حقايق ، دلائل او وړانديزونه په دا ســې بڼه وي چې د تســلســل اصــل پکې مراعات شــوی وي چې اورېدونکي ، ليدونکي او ياهم لوســتونکي د پيغام له روان تســلســل سره يو ځای لار ووهي او په مســلسـل ډول حقايق را بر سـېره کړي ، په داسې ډول چې د لوستونکي ګومان په يقين بدل کړي ، خو که چېرې حقايق او دلائل په داسې ډول وړاندې شي چې يوه خبره له يو ځای او بله له بل ځای څخه او په منځ کې يې کومه بله خبره يا پيغام وي نو د ربط د نه شــتون له امله لوســتونکي خپله حوصــله له لاســه ورکوي ، زموږ د ځينو پوهانو په اثارو کې داسـې الفاظ او کلمات ځای په ځای شوي وي چې کلـه يې لولې کلمات او الفـاظ يط هيڅ تړاو نه سره لري او که يې لري هم داســې الفاظ پکې وي چې اصل موخه له سرې ورکه کړي .

**۳ـ غیر اړینې کلیمې :**

متـل دی چې د هر مســـلـک لپاره خلک وي په دې معنی چې هر مجلس ، ځای او چاپیر یال ځانګړي اصول او قواعد لري چې باید دهغو په رڼاکې خبرې وکړی شي .
بریا لی پیغام هغه وخت شــونی ده چې غیر ضروري او ســتونزمنې کلمې پکې ونه کـارول شي ، پېچلی ترکیـب ، مبهمې جملې ، او الفـاظ پیغـام غیر موثره او د نــه پوهېـدو وړ ګر ځوي ، د عـامـه اړیکو په برخه کې کله هم چې پیغام لېږل کیږي نو دې ټکي ته مو باید پام وي چې پیغام د ټولو لپاره دی نو باید پېچلې کلمې او لغات پکې ونه کارول شي تر څو د هدفوړ خلک ترې سالمه ګټه پورته کړي .

**طرز:**

د عامه اړیکې په برخه کې د طرز انحصار تر ډېره بریده د مخاطب د پوهې په کچه پورې اړه لري . کـه چېرې مخـاطب لوړ ســواد لري ، نو پیغام لېږونکی خپل پیغام بـایـد پـه منطقي ډول وړانـدې کړي ، ځکـه چې بـاســواده خلک منطقي انداز ډېر خوښـوي ، خو په مقابل کې بې سواده خلک بیا منطقي انداز نه خوښو ي ، ځکه نه پوهېږي ، نو اړینه ده چې دوی ته پیغام په ساده او روانه ژبه وړاندې کړل شي ، تر څو په اسانه ډول پیغام درک کړای شي ، ځکه ښه وینا هغه ده چې خلک یې واوري او عمـل پرې وکړي اود ژورنالیزم په مســلک کې کله کله دمقابل کس د راجلبولو لپـاره لـه ټوکو طنزونو او ځینې متلونو څخـه هم ګټـه اخســتـل کیږي چې دا هم دژورنالســـت په وړتیا، تجربې ، چالاکي او درایت پورې اړه لري هر څوک دا کار نه شي کولی .

**دحالاتو او واقعیتونو تر منځ د موافقت نه شتون**

د موثرې اړیکې پر وړانـدې یو بـل لوی خنـډ دا هم دی چې کله کله پیغام لېږونکي حالات او د خلکو اړتیا په نظر کې نه نیسي ، چې له امله یې هدف وړ ټولنه له پیغام سره علاقـه نـه څرګندوي ، چې پایله یې ناکامي ده ، نو اړینه ده چې د پیغام دلېږد

په وخت کې دیوه طبیب په څېر د مخاطبینو پر نبض لاس کېږدي او پوه شي چې دوی څه غواړي له دې سره سره پیغام لیږونکي خپل پیغام له حالاتو او واقعاتو سره سم عیار کړي ځکه که دوخت شرایط په نظر کې ونه نیسې کیدی شي ستا پیغام د وخت دنه مساعد کیدو له کبله بې ګټې ثابت شي او په ټولنه اغیز ونه لري ، مثال کـه پـه ۱۳۹۷ کـال کې ټـاکنې کیږي بـاید امنیت وي که امن نه وي چې کاندیدان څومره نـاري وکړي څوک رایي اچونې تـه نه حاضریږي همدارنګ زموږ د لوړ زده کړو وزارت ځینې قوانین چې د ټولنې له فعلي حالت سره په ټکر کې دي د پلي کولو لپاره یې ټولې اداري او پرسونل له ستونزو سره مخ  وې بالخره یې بیرته قوانین تعدیل کړل .

**عـمر** :

د اړیکې د رواني خنـډونو پـه برخـه  کې عمر هم خنـډ ګرځیـدلی شي .مثلاَ : یو ۱٦ کلن هلک که څومره خپل پیغام په فصیح ، بلیغ ، او مدلل ډول وړاندې کړي ، خو د یوه ۳۰ کلن ســړي لپاره به ډېر د اعتماد وړ نه وي ، ځکه چې عمرونه یې ډېر توپیر لري په افغاني ټولنه کې دا معمول دی چې کشران باید دمشرانو خبره ومني او کله چې د دوی عمرونه یو شـان وي نو د مشـــاهدې ، تجربې ، اومطالعې  ، ذهني پس منظر او هم پـه نورو برخو کې سره ورتـه والی لري ، چې لـه املـه یې پیغام یا اړیکه بریالۍ او سره همغږې وي .

**لیک (خط)** :

د پیغام په بریا او ناکامۍ کې خط هم ونډه لري ، دا ممکنه ده چې یو اعلان په یوه ســیمـه کې اغېزمن وي ، خو په بله کې ممکن بیا غیر موثر وي ، ځکه  دیوه اعلان اغیز په بې سـواده اوباسـواده ټولنو او همدارنګه دسـیمې کلتوري اسـاساتو له کبله بیلابیل اغیز لري  او د سیمې  دودونه پکې ځانګړې ونډه لرلی شي  .

مثلاً : که د یوه نوي ډیزاین کندهارۍ غاړې اعلان د خوست خلکو ته وړاندې کړي شـــایـد تـاثیر یې کم وي ځکـه دلتـه رواج نـه لري خوکه دغه اعلان په کندهار کې خلکوته وړاندې کړای شي نو مثبته نتیجه به ولري ځکه چې د خوسـت خلک سـاده غـاړه خوښـــوي ، او د کندهار خلک ګلدوزي ، په دې برخه کې ښـــاري او غریيزې سـیمې لوی توپیر سره لري ، د ښـار خلک عموما نوي سـاده ، او ډیزاینې شـیان خوښوي او دغرو خلک لرغونې جامې او ... .

**نسل :**

کله کله په سـیمو کې دنسـلونو مسـلې هم خنډونه را زیږوي او هغه خلک چې په سـیمه کې تخریبي موخې لري لـه دې ټکي لویه ګټه پورته کوي ، زموږ هیواد کې تنظیمي او مذهبي جګړې له همدې امله رامنځ ته شوې نسلي تضادونه هم د اړیکو پـه پـه برخه کې خنډونه را منځ ته کوي . مثلاً : په سـویلي افریکا کې د سـپین پوسـتو او تور پوسـتو تر منځ له ډېره وخته را هیسې د واک پر سر شخړه وه ، سپین پوستي کم خو په واک کې وو ، او تور پوستي له اکثریت سره سره له واکه بې برخې وو......

دلته که چېري سـپین پوسـتو تور پوسـتو ته له حکومت سره سره د همکارۍ او وفادارۍ ویل ، دا پیغام او اړیکه به ناکا مېده ځکه دلته نسـلې تضاد موجود وو په ۲۰۱۷ کال په برماکې د روهنګي مسلمانانو او بودایانو تر منځ نسل وژنه چې بودایانو د مسـلمانانو وژنه پیل کړې وه د همدې برخې یو ښـه مثال دی همدارنګه په تیرو لسـیزو کې په هیواد کې دشـعیه سـونی ، فعلا به ځینو سـیموکې د قومونو تر منځ ټکرې هغـه څـه دی چې د هیواد پـه ټولو اداري ، غیر اداري او نورو برخو کې یې ځانګړي اثرات تر سترګو کیږي ، جنګونه ، لانګې تښتونې ، وژنې ... را منځ ته کوي

**كورني روايات :**

دا چې مونږ ســـنتي ټولنــه لرو نو بعضـــې وخـت مو كورني روايـات هم د اړيكو پر وړاندې خنډونه جوړولی شي ، بعضې خلک د کورني روايت ، رسم او رواج له امله د پېړيو زاړه فکرونـه لـه ځـانـه سره لري ، او پر ځان د کوم نوي فکر منل ورته د خپلو اسلافو رسم او رواج سپکاوی ښکاري چې ډير په سختی منل کيږي.

کورني روايات له نيکونو او غوره نيکوونو څخه له يو نســل څخه بل نســـل ته ليږل کيږي او ورو ورو د يو قـانون او پـاکوالي بڼه غوره کوي ، په عموم کې خلک د دې رواياتو پر خلاف هيڅ نه شې زغملای کله کله د وړو وړو مسايلو پر سر لويي لانجې را منځ ته کيږي ، چې دا ډول مسايل هم داړيکو په مخ کې لوی خنډ جوړوي .

يو روايت خوښـــوونکی ســـړی خپل کورني روايات لوړ گڼي ، که چېرې څوک هڅه وکړي چې د کوم گونـد لـه منشـــور او کړنلارې څخه يې متاثره کړي ، چې د ده له کورني رواياتو سره په ټکر وي نو کله به يې هم اوريدو ته زړه ښه نه کړي .

**د بيان ازادي محدودول :**

د فکر اوبيان ازادي دانسـان طبعي حق دی ځکه انسـان خدای داسې خپلواک پيدا کړی چې د فکر لارې څوک نخ شي بندولی ، که يې بندوي نوزغمل يی ناشوني دي او بالاخره دابنديز لري کيږي ځکه د انسـان ضـمير هغه څه دی چې بې ځايه ناروا ځواک نـه مني کنـه دلرغونو او اوســـنني پيړۍ د زورواکـانو لـه کبلـه بـه د ډيرو انسانانو افکار په سينو او مغزو کې دفن شوي وو.

کـه چېرې پـه کوم هېواد کې د بيـان ازادي نـه وي نو دا ســـتونزه هم د اړيکو پر وړانـدې يو خنـډ ده ، پـه داســـې حـالاتو کې هيڅوک خپل فکر په ازاد ډول نشـــې بيانولی ، که چېرې پر رسـنيو دولت واکمن وي نو اپوزيسيون او د حکومت مخالف گونـدونه د حکومت پر غلطيو ،پا ليســـيو ، له نيوکو څخه عاجز وي او خپل غږ تر خلکو نشي رسولی .

## د موثرو اړیکو غوښتنه او ضرورت :

څومره چې پیغام د اوریدونکي له طبعیت سره ( د اورېدونکي یا تر لاسه کوونکي له ذوق سره برابر وي ) همدومره به ګټور وي .له اړیکې څخه هدف د تر لاسه کوونکي یا مخاطب په رویه کې بدلون راوستل دي . دا د ارتباط اغیز دی چې په رویه کې بدلون را ځي .

مونږ باید خپل پیغام پداسې بڼه چمتو کړو چې زمونږ لیدونکي ، لوستونکي او اورېدونکي زمونږ له پیغام څخه زمونږ د هدف مطابق مفهوم واخلي . د پیغام له ترتیبولو وړاندې د اړوند ه خلکو ، چاپېریال او د دوی ذهني کچه باید په پام کې ولرو. داسې کلیمې ، علامې او پېچلي تشبیهات باید ونه کارول شي چې خلک ورسره نا اشنا وي .

د موثرې اړیکې په برخه کې پیغام د ملا د تیرحیثیت لري . مثلاً : ته د یو داسې شي نوم اخلې چې مخاطب ورسره اشنا نه وي او نه هم پدې برخه کې علاقه او تجربه لري نو دا اړیکه به ناکامه وي ، خو که چېرې د داشي نوم واخېستل شي یا ذکر شي چې له وړاندې مخاطب ورسره آشنا وي ، نو په آسانۍ سره به ستا د خبرې مفهوم درک کړای شي ، چې دا به هم یوه بریالۍ اړیکه وي مثلا په افغانستان کې موږ یو ډولل د اوب کشتۍ پیژنو حال داچې په بحري هېوادونوکې څو ډوله کشتۍ شته او پیژني یې نو موږ له یو ډول سره اشنا یو او نور خلک د هر ډول کشتۍ نوم او بڼه پیژني .

## د وړ اومنا سبو کلیمو کارول :

د اړیکو په برخه کې د وسیلې د انتخاب پر مهال باید دا خبرې په ذهن کې ولرو چې .

۱ــ د چا لپاره مو چې پیغام چمتو او لیږو ، او د پیغام درسولو وسیله مو چې غوره کړې ، ایا نومړې وسیلې ته دوی لاس رسی لري او که نه ؟

۲ـ ایا دوی یې د رانیولو توان لري ؟

۳ـ ایا انتخاب شوې وسیله د دوی په ژبه د پیغام د لېږد وړتیا لري ؟

۴ـ د دوی لپاره کومه رسنۍ یا وسیله ډېره مناسبه ده ؟

❖ ورځپاڼه ، تلویزیون او که رادیو .

❖ مخامخ خبرې .

❖ دودیزې وسـیلې لکه نقالي ،تمسخر،داستان ، درامه ، طنز ،قیصې او داسې نور.

❖ وړې او محدودې وسـیلې لکه ټیپ ریکارډ ، DVD ، پروجیکټور او داسـې نور .

❖ او یا هم نوې او پر مختللې ټکنا لوژي پر مټ لکه انټرنېټ او داسې نور.

د دوی دغوښــتنو، اغیز ، لاس رسي او توان د درلودلو په رڼاکې باید وســیله وټاکل شي.

## د ژبې کارول :

د ځمکې پر مخ تقریبا ٦۰۰۰شـاو خوا ژبې ویل کیږي چې بیلا بېلې جملې کلمات او ځانګړي مفاهیم لري ، ژبه د لیکلو په بڼه هم وي او د خبرو هم ، له اشارو او کنایو هم د ژبې په برخه کې ګټه اخلو او د ګرافیک په مرسته هم، چې د اړیکو پر مهال ژبه په زړه پورې ګټې لري او هم خنډونه جوړولی شی .

که دې خبرې د مخاطب له سـویې لوړې وي او یا هم ستا په ژبه ونه پوهېږي نو دا یو خنډ ده ، خو که د مخاطب په ژبه دې خبرې وکړې ، کلیمې او جملې د نوموړي له سـویې سره برابرې وي ، او مخاطب ستا مفهوم درک کړای شو ، نو بیا همدا ژبه ده چې د مرستندویه وسیلې رول لو بولی شي .

مثلاً : د خوســـت ، پکتیـا او یـا هم د پکتیکـا خلکو تـه پـه دري ، اردو او یـا هم پـه انګریزي ژبه خبرې کول به یو غیر منطقې عمل وي ، ځکه د دې ســیمې خلک له دې ژبو سره بلدتیا نه لرې ، ډیر کم خلک پرې پوهیږي ولې په پښتو ټول پوهیږي .

## ټولنیز او اقتصادي اړخ :

کله چې مونږ دا خبره کوو چې د موثره اړیکو لپاره مو پیغام باید د مخاطب له ذوق سره برابر وي ، او دا ، دا معنی لري چې پیغام لېږونکی باید له خپل مخاطب څخه په هر اړخیز ډول خبر وي .

د دوی ټولنیز واک، ژبـه ، لباس او عقیدې سره اشـــنا وي . د پیغام لېږونکي پیغام بـایـد پر وخـت ، بـا مفهومـه او لـه روانو حـالا تو سره برابر وي او کلـه چې پـه دې مطمین شي چې .

۱ـ د اړیکو پر وړاندې ټول خنډونه لرې شي دي .

۲ـ وسیله مو وړ او منا سبه ده .

۳ـ پیغام مو په ښه ډول وړاندې کړی .

۴ـ دوه اړخیزې اړیکې مو نیول شوې .

لـه دې سره سره کلـه چې د مخاطب په علم ، تجربه او رویه کې په مناســب ډول بدلون راغلی وي نو پوه شئ چې د ارادې ، رویې او تو ضیحي رویې تر منځ همغږي وجود لري ، او یوه موثره اړیکه تر سره شوې ده .

**د موثرو اړیکو اساسي شرایـط:**

پرو فیسـور مهدی حسـن په خپل کتاب " ابلاغ عامه " کې لیکي د ((پیغام له لېږلو وروسـته د بریا او یاهم د ناکامۍ په اړه صـحیح وړاندوینه کول ستونزمن کار دی ، خو تر یوه بریده دا اندازه لګولی شو چې پیغام مو تر کومه بریده بریالی دی ))۵۴۲

د دې انـدازې لپـاره مونږ باید له هغو حالاتو او شرایطوخبر وو چې د موثرې اړیکو لپاره اړین وي .

د ي شرایطو تـه پـه پـام سره موږ کولی شـــو پوه شـــو ، چې زموږ پیغام به زموږ د خوښې مطابق مفهوم ولېږدوي ، او ښه لاسته راوړنه به ولرو .

**د موثرو اړیکو اساسي شرایط په لاندې ډول دي :**

۱ـــ د اړیکو پر مهال مو باید د پیغام لېږد په داسې ډول وي چې ، د لو سـتونکو او اورېدونکو توجه ځان ته راجلب کـــــــــــړی .

۲ـــ د پیغام پر مقصـد د پوهولو لپاره اړینه ده چې ، پیغام لېږونکي داسې کلیمې ، علامې او تشـــبېهـات وکـاروي چې د ده ( سر چینې ) او مخـاطیبینو پـه تجربو کې همغږي شتون ولري .

۳ـ د مخاطب د شخصیت د تکمیل غوښتنې باید را وپارول شي او هم یې د تکمیل په خاطر بېلا بېلو طریقو څخه کار واخستلای شې .

۴ـــ زمونږ مخاطب چې په کوم چاپېریال کې او سېږي ، پیغام مو هم باید له همغه چـاپېریـال سره مطابقت ولري او هغه چاپېریال مو باید په پیغام د عمل پر وړاندې خنډ جوړ نه شي ، ځکه چې د ټولنیزو خویونو او اقتصادي حالاتو مطالعه اړینه ده .

د موثرو اړیکو لپاره پورته ذکر شوي شرایطو ته په کتو دا رو ښانه کیږي ، چې د سر چینې لپـاره د مخـاطـب پـه اړه معلومـات څومره اړین دي! پـه ځـانګړي ډول پـه ژورنـالیزم کې دې اړخ ته توجه یو مهم اصـــل دی، د یوه پیغام د بریا لپاره د پیغام کلیمې ، وخت او ور سره د مخاطب چاپېریال چې کوم ارزښـت لري باید هیڅ ګله هم لـه پامه ونه غورځول شي ، ځکه هغه پیغام لېږونکي ، یا سرچینه دې ته اړ باسي چې د خپل هدف یا مخاطب د حالاتو او چاپېریال په اړه ښـــه پلټنه وکړي ، مخامخ اړیکه یا د پیغام لېږد ډېر اسـانه وي ، ځکه چې سر چینه په طبعي ډول له مخاطب سره بلد وي .

مګر د ډلهییزو اړیکو په برخه کې د لېږونکو ، او یا هم د اورېدونکو شمېر ډېر وي ، او پیغام لېږونکی یې په شـخصي ډول نه پېژني ، هغه خپل پیغام د رادیو ، ورځپاڼې ، تلویزیون او یاهم فلم ...په وسـیله خپروې ، او په دې برخه کې د اورېدونکو او یا

هم لیـدونکو پر چاپېریال او ذهني پس منظر پوهېدل ډېر ســتونزمن وي خو ښــه خبره داده چې د محیطیي شرایطو پـه رڼـاکې خپلې مو خې پـه ډېر مخـارت او احتیاط سره وپالل شي .

## د یوه ښه پیغام لېږونکي ځانګړتیاوې

دا چې د خدای په مخلوقاتو کې د ژبې نعمت یوازې انسـانانو خدای بښـلی دی نو لازم دی چې له دې نعمت څخه عظیمه ګټه واخلي ، په داســې ډول یې اســتعمال کړي چې د نورې ټولنې د خوښی ، هوساینې او رضایت سبب وګرځي نه د نفرت او کرکې . دا چې ژبـه یوځـانکړی بحـث دی چې پـه اړه کتابونه لیکل کیږي خو لازمه داده چې باید حثیت او ارزښت یې وساتل شي .

دا چې یو ښه پیغام لېږونکی باید کومې ځانګړتیاوې ولري په لاندې ډول یې بیانوو. خپله خبره او پیغام په موثر ډول تر نورو رسول ، د بل چا خبره په سم ډول اخیستل ، یو هنر ده . په دې پرمختللي نړۍ کې که غواړې بریالی شـې ، نو باید په خبرو ، وینـا او اورېـدلو کې مهـارت ولرې ، اړینـه ده چې د پیـاړو اړیکو له اصــولو څخه خبرتیـا ولرې ، په عادي ډول خو د ګټورو اړیکوپه برخه کې د انســان رویه او خپل ذهني صــلاحیتونـه ډېره ونـډه لري ، خو له دې سره سره ځینې تدابیر او کړنې هم شته چې په کارولو سره یې یو څوک په خپل مقصد کې بر یا لی کېدای شي .

دا تدابیر له هغو صلاحیتونو سره تړل شوي چې دهر نارمل انسان دهن کې شتون لري ، مګر لـدې وړتیـا څخـه پـه کـامـل ډول د اســتفـادې کولو لپاره اړینه ده چې مناســب کار ترې واخســتل شي ، او دا کار هغه وخت ممکن دی چې له دې لوی نعمت څخه کار واخلي ، وګوری د نړۍ اوســني وســایل دهمدې خدایي هســتۍ دهڅو او کوشـشونو برکت دی ، دلته مو موخه ستاسې له هغو وړتیاوو څخه خبرول دي چې په مرسته یې تاسې خپله خبره تر نورو په سم ډول ورسولی شی .

انســـان په فطري ډول د خپل چاپیریال مســـایل درک کوي په مقابل کې مثبت یا منفي غبرگونه ښی یی ، په چا کې چې هر څومره د مسایلو د درک صلاحیت ډېر وي نو پـه پـه همغـه کچه خپل پیغام هم تر نورو رســـولی شي ، دفاع یې کولی شي څومره چې انســـان پـه ټولنـه کې ښـــکیـل وي پـه همغـه انـدازه یې د ټولنې په اړه معلومـات هم زیـات وي ، د خلکو د مختلفو قشرـــونو په اړه بیلا بیل معلومات هم لرلی شي خپل ځان هم پکې ارزولی شي چې زه په دې ټولنه کې د ارزښـت ، اړتیا او ضرورت لـه مخې پـه کومـه کچـه کې یم څوچې موږ دځـان ، ټولنې ،او ځینو مهمو مسایلو او وگړو په اړه معلومات ونه لرو مو ږ نه دټولنې او نه هم دځان په اړه سالمه پریکړه کولی شو. دا دا سې مثال لري ، لکه یو څوک چې د کور په انگړ کې ولاړ وي اوهځه کوي ، چې د بهر حالات اندازه کړي چې دا هیڅ کله هم امکان نه لري ، څو له کوره بهر ونه وځي او شاوخوا څار وکړي .

وارله مخه اندازه گیري ، احسـاسـات ، عکس العمل او یا هم د تعصب ښکاره کېدل د بریالیو اړیکو پر وړاندې خنډونه جوړوي ، که په دې برخه کې ته هر څومره هڅه هم وکړې کامل بری ناممکن دی نو له دې کبله مهم ده چې د بر یالیو اړیکو لپاره پیغـام لېږونکی خپل جذبات او احســـاســـات په واک کې ولري ، له خپلو بې ځایه غوښتنو او احساساتو څخه تیر شي.

د یوه مسلکي پیغام لېږونکي د بریالیتوب راز په دې کې نه دی چې هغه دې د بېلا بېل تدابیر وکاروي له وخت په سـالم او سـم ډول کار واخلي او پر سم کارولو یې وپوهېږي .

بلکې دا هم اړینه ده چې دی د خپل ځان ، چاپېریال او د نورو وړ وگړو په اړه د بې طرفه څېړنې وړتیا ولري ، د دې خبرې په سم ډول اندازه کول چې یو پیغام لېږونکي کې د اړیکو کومې وړتیاوې ، او نیمگړتیاوې شـــتون لرې پوره درک او د لاندې ټکو کې یې وارزوي .

## د پیغام لېږونکي شعور :

د یوه پیغـام لېږونکي پـه حیث باید پر حقیقت ولاړه لیدنه ، کتنه ، او پلټنه وکړي ، ستا خپل فکر او احساسات څه دي ، او همدا ډول هغه خلک چې ته ورسره سرو کار لرې د کوم فکر ، ایډیالوژ ی او نظر خاوندان دي .

## فکر :

دلته د فکر، خیال ( نظر ) کلیمه هر څه چې ته یې تر نورو رسوې ، فکر ده . ته باید د دې فکر په حقیقت پوه شـــې ، لدې سره سره هغه حالات هم باید وپېژنې چې دا خیالات پکې څر ګندیږي .

## د خبرو کولو عمل :

د پیغام له رســـولو سره بلدتیا اړینه ده ، یعنې له یو چا سره د خبرو کولو پر مهال کوم عوامـل باید په نظر کې ونیول شي ، لدې خبرې څخه قطع نظر چې فکر څه ده او خلک څوک دي ، دی په دې پوهه وي زما مخامخ خلک زه څنګه را جذبولی شم.

## کره او معلوم هدف :

د خبرو کولو پر وړاندې چې کله یو هدف او مقصد پروت وي ، نو د اړیکو عمل ډېر اسـانه وي ، هغه خلک چې ځانګړی فکر او منظم اعصـبي سستم ولري ، ښه پیغام لېږونکی ثـابېتېـدای شي ، ځکه چې دوی د خبرو کولو انداز او په هر اړخیز ډول د اړیکو نیولو له اصولو سره بلد تیا لري .

**د فکر د وېشلو وړتیا :**

لدې څخه موخه ټولې هغه خبرې او ترخه حقایق دي ، چې نه غواړو ، په اړه یې فکر وکړو د ذهن په کوم کونج کې یې ږدو ، کېدای شي دا تکتیک ډېر موثر تمام شي ، ځکه چې داسې څوک چې مسـایل په بېلا، بېلو بر خو وېشي او بیا په تر تیب سره خپل فکر په دې برخو کې ځای پر ځای کوي ، کولای شي خپل مقاصد په ډېر واضح

ډول بیان کړي ، چې ور سره خپلې ســتونزې هم په درســت ډول حل کولای شي ، داسې وګړي د خبرو پر مهال ډېر محتاط وي .

د دې لامل داده چې کله د یو چا پر وړاندې کومه ستونزه وي او هغه شخص شپه او ورځ د دې پـه اړه فکر کوي ، نو څرګنـده خبره ده چې د حـل کومـه لاره به ورته لټوي ، او دا ډول فکر خلک له عقل مندي سره تعبیروي ، مونږ هم باید دا زده کړو چې د ژونـد هغه اړخونه چې حل کول یې اړین دي ، هغه باید د خپل ذهن په کومه داسـې برخه کې ځای پر ځای کړو چې په اړه یې فکر کول شـوني وي ځکه که موږ خپله فکر ونه کړو نو تر څو دنورو په افکارو پســې منډې وهو ، هر انســان دا وړتیا لري چې په موضوعاتو له مختلفو اړخونو رڼا واچوي خو تجربه مهمه ده .

**عملي همدردي یا درد مندي** :

له یو چا سره همدردي کول یوه خبره ده ، او ورسره په غم او ښادۍ کې ګډون کول بله خبره ؛ دا د درد مندۍ جذبه ده ؛ چې ځان د بل چا د شــخصــیت په جز ګڼلو سره د هغه احساسات حس کول د عملي همدردۍ په معنی ده .

د خپـل ځـان او بل چا تر منځ همغږي ، کله چې له یو چا سره همدردي کوې ته یې هم داسې محسـوسـوې څنګه یې چې هغه کوي ، یعنې ته د دې شخص په ذهن او شـخصـیت کې تحلیل کېږې ، څومره چې په تا کې د همدردۍ صلاحیت ډېر وي ، ممکن دومره ښه پیغام لېږونکی واوسې .

پرته له دې چې د چا په جزباتو او احسـاسـاتو پوه شـې ، او د هغه په درد او غم کې ګډون ونه کړي ته به ونه شې کولای خپل پیغام تر نورو ورسوې .

**میـــــلان** :

له طبعي مینې او میلان پرته تقریباً ټول کاررونه او شیان غیرې موثر ثا بېتیږي ، له میلان څخه موخه د یو کار د کولو قوت ، صلاحیت او له هغه سره مینه ده ، څومره چې ســتـا پـه زړه کې د یوه کار لپاره میلان زیات وي ، همدومره یې د ژر تکملېدو

هڅه کوي ، او وبه کولای شـي چې پر وړاندې يې له پرتو هر ډول خنډ سره مقابله وکړې ستا دکار وړتيا او مينه د دې اجازه نه درکوي چې خنډ درته واقع شي.

**ښه خوی او مثبته رويه :**

د انســان معنی ، مينه ، محبت او مهکاري ده ، د خدای اخري پيغمبر حضرت محمد ص فرمايي چې : ( زه د ې نړۍ ته معلم راليږل شوی يم ، څو د اخلاقو نمونې خلکوته وښی يم) نو انساني ښه اخلاق هغه الهی تحفه او نعمت دی چې د نړۍ ډېر لوی لوی وسايل يې مخه نه شی نيولی ، نو له همدې کبله هغه خلک چې رويه يې د ژوند په اړه مثبته وي ، له هغو خلکو ښــه ثابتيږي، چې رويه يې منفي وي او له هر مســوليت څخه د ځان خلاصــې لپاره جواز او لار پيدا کوي ، هغه خلک چې د هرې خبرې پټ ساتل يې عادت وي نه شـې کولای يو ښه پيغام لېږونکی واو سي ، دا په دې مانا نه ده چې ته يوه خبره هم پټه مه ساته بلکې لږ تر لږه بايد ځان د دې جوګه کړې چې خپل فکر او ځان د خپل طبيعت له قفس څخه ازاد کړای شـې ، تر څو راتلونکی وضيعت د خبرو له لارې تر نورو ورسولای شې ، که حالت داسې راغی چې ته چيغه وکړې ، نو چيغه هم وکولای شـې او سـخت الفاظ هم وکارولای شـې ، مګر چې شرم احســاس نه کړې ، بلکې داســې احســاس کړې لکه څه ډول يې چې مخاطب احســاســوي ځکه تر څو چې نورو سره ناســته ولاړه ونه لرې ، ورسره ونه ګرځې ، وړ راز ورسره شريک نه کړې نو ستا غږ هم تر منزله نه رسيږي او د نړۍ په يوه کونج کې حصاريوې چې دا عمل په اسلام کې ناروا دی او منعه يې راغلې ده . دلته اساسي پوښتنه داده، چې ته له کومې لارې او په څومره تيزي سره خپله خبره تر نورو رسول غواړې او د دې ځواب هم يو ازې ته ورکولای شې او بس.

**عملي بڼه :**

هغـه خلـک چې د هرې خبرې لپاره يوازې پر کتاب تکيه کوي ، او له هرې پريکړې کولو وړاندې د اصـولو يا پاليسې د کوم کتاب حواله ذکر کوي ، له دوی څخه هغه

خلک ډېر بریالي وي چې د بصـــیرت پـه رڼا کې پرېکړه کوي ، گویا د موټرو خبرو کولو لپاره کوم ترلي او ټاکلي اصول نشته ، بلکې اړینه ده چې انسان په لاندې برخو کې ځانګړتیا ولري .

مثلاَ : کارو بار ، قانون ، اصـول ، اخلاقي ضوابط او ورځنی ژوند ، په دې برخه کې د سـم او نا سم اصل تو پیر باید په پام کې ولرو ، خپل ځان باید د مصنوعي اخلاقو تر تـاثیر لانـدې رانه ولو، او نه هم بې ځایه په کومه خبره شرمنده شـــو بلکه هغه لاره خپله کړو چې سـتا ذاتي او طبعي وي نه مصـنوعي ا تملقي چارې ځکه داسـې کار سالم پای نه لري .

## شخصي روش:

ذاتي او شـخصيـ روش ډېر مهم رسنیز عنصر ده ، په اوسني عصر کې مو هڅه باید دا وي ، چې خپل شـخصـیت بر قراره وسا تلای شو ، د خپل ځان لپاره کوم ځانگړی شـــخصـــیت او ځانگړتیا پیدا کول کومه بده خبره نه ده ، د خپل ځان لپاره داســې عکس پیدا کړئ چې څه ډول غواړی، خپل ځان د زمانې پر وړاندې وښـا یاسـت ، دا سـې کار او خبره هېڅ کله مه کوئ چې سـتاسـې پر شخصیت منفې اغېز وکړي او بیا په ټولنه کې منفور وبلل شی .

## صبر او حو صله :

صبر او حوصله د خدای د ټولو پیغبرانو ځانگړی صفت وو هغوی په دې نړی کې د ډېرو کړاوونو په وړاندې له زغم او درنې حوصـــلې کار اخســـتی ، بری یې مونلی او بالاخر تر منزله رسیدلي دي نو موږ ته هم په کار دی چې د ژوند په چارو کې له له سـتر نعمت څخه پوره گټه واخلو او په دې کې هېڅ شـک نشـته چې با همته او با جرئته خلک خپل فکر او خیال په ډېر ښه ډول تر نورو رسولی شي ، او د دوی افکار متاثره کولی شي بالاخره خپل هدف ته ځان رسـولی شي ، خو بې زړه او ډارن خلک کله هم پیغام تر منزله نه شي رسولی او نه به هم یو ښه پیغام رسونکی شي .

### خوشالونکی طبعیت :

خوش طبعیته او با اخلاقه انســان د ژوند په ټولو چارو کې بريالی وي داســې خلک چې په خبرو کې يې هر وخت ټوکې ، ټکالې ، خندا وي او د داسې خلکو په نسـبت ښـه پيغام لېږونکي کېدای شي، د نړۍ په مهممو عامه ځايونو ، ادارو ، موسـسو او داسې ځايونوکې چې راشه درشه يي د ټولنې له مختلفو وګړو سره وي ، داسي وګړي ګومـاري چې د اخلاقو لـه کبلـه جوړ او وړ خلـک وي ، او هغه خلک چې خبرې يې همېشـــه جدي وي په نظامي ، اســتخباراتي ځايونو کې ځای په ځای کيږي څو په ځانګړيو شرايطو او ځايونو کې د دوی له رويو کار واخلي .

هغـه خلک چې په ورين تندي خبرې کوي ، رويه يې په ژوند کې ډېره په زړه پورې وي ، دا ډول حس سړی له ذهني انتشار څخه ژغوري ، او د پر مختګ په برخه کې ورسره مرســتـه کوي ، پـه خپلو خبرو کې توازن پيـدا کړئ او د بـل خبرې تـه هم ارزښــت ورکړئ ، که تعليمي ادارو کې له تدريس سره تشــويق يو ځای شي څومره موثر تماميږي ، هغه اسـتادان چې بې ځايه زده کوونکي له فشار لاندې راولي خلک ترې زيات نفرت او کرکه کي ، درس يې سم نه زدهکيږي .

### پيغـام د منزل ( هدف ) له فکر سره همغږي کول :

لـدې څخـه موخه داده چې له چاسره خبرې کوې ، او يا هم پيغام ور ليږۍ بايد په واضـح او خلص ډول وي داسـې چې د هغه فکر تر لاسـه کړئ، عموماً داسـې خبرې لوستي او د بصيرت خاوندان کولی شي ، توازن ، مينه ، سادګي د مو ثرو خبرو لپاره ډېر اړين دي .

### د اړيـکې د کنټرولولو کړنلارې :

مخاطبين پيغامونه په لاندې ډول کنټرولوي :

۱ـ تر جيحي انتخاب ( Selective Exposure).

۲ـ تر جيحي ادراک ( Selective Perception).

۳ـ تر جیحي یاداشت ( Selective Retention).

**۱ــــ تر جیحي انتخاب** ( Selective Exposure)**:** هغه ترجیحي انتخاب د خلکو د خوښې وړ وي ، چې له اوسني او مخکیني فکر سره یې اړخ لګوي ، د هغې اړیکې په نســـبـت چې د فکر مطـابق یې هم وي خو نـه یې تـائیدوي ، ګویا خلک یوازې هغه معلومـات قبلوي ، چې د دوی لـه فکر سره اړخ لګوي او په رســـنیو کې به هم هغه خبره خوښـــوي ، چې غواړي دوی یې پـه اړه ډېر پوی شي ، وار لـه مخه پکې علاقه ولري ، د دې لپاره چې د دوی فکر نور هم مستحکم شي ، په همدې ډول هغه خلک چې لرغونې (کلاسـیکه) موسـیقې خوښـوي نو نوې موسـیقي به ورته په زړه پورې نه وي ، او همداسې د نوې موسـیقۍ والا به کلاسـیکه موسیقي نه خوښوي ، په ټاکنو کې هر ګوند خپل شعارونه لري او خپروي یي خو دملت ډیری وګړي دهغه کاندید ټاکنیز شعارونه خو ښوي او زمزمه کوي یې چې دوی ته په زړه پورې او ګټې یې په کې خوندي وي.

په همدې ډول په ســوپر مارکېټ کې ډېر څه موجود وي ، خو مشــتري یوازې هغه څه رانیسيـــ چې اړتیا ورته لري ، او خوښ یې وي او له توان سره یې برابر وي . په همدې ډول په ارتباط کې به هم هغه پیغام انتخابوي چې د ده په فکر صحیح وي .

پـه همـدې ډول پـه ااعلانونو کې بـه هغه څه ګوري او اوري چې ده ته په زړه پورې وي ، دی به یوازې هغه ورځپاڼه لولي چې پالیسي یې د ده له فکر سره په ټکری کې نـه وي ، یـا ورسره برابر وي خلـک تـل د هغـه څـه پـه اړه تبلیغ کوي چې د دوی خوښیږي .

کـالپر ( Kallper) وایې ((خلـک د عـامه رســـنیو هغه برخه انتخابوي چې د دوی د خیال او فکر مطابق وي )) .

د چیلډز ( Childs) په وینا چې د خلکو فکري میلان د هغه څه لوستلو ته وي ، چې د دوی فکر یي صحیح ثابت کړای شي ، یا ورسره همغږي وي .

د کرکټ د لوبې په دوران کې چې کوم اعلان درســـنیو له لارې خپریږي په ځوانانو بـد اغیز کوي ځکـه دوی اعلا نـه غواړي بلکـه لوبـه خوښـــوي . او برعکس اعلان ورکونکی غواړي چې اعلان یې بـار ، بـار خبور شي څو یې اجنـاس ډیر او ژر خرڅ کړی شي .

**۲ـ تر جیحي ادراک ( Selective perception)**

مونږ په ډېرو شیانو کې یوازې له هغه څه سره مینه لرو ، چې وار له مخه یې خوښوو ، مثلاََ : د افغانســـتان په ټاکنو کې د ډاکټر اشرف غني او عبدالله تر منځ ټاکنیزه مبارزه او شـــعارونه هغه څه وو چې افغان ملت یي د دوهم ځل ټاکنو لپاره را ویښ کړ دوی دواړه کاندیدان د دوی له کړنو او شعارونو وپیژندل او په دې پوهه شول چې څوک پـه دې حـالت کې هېواد ته گټور او وفادار دی ، دوی فقط له شـــعارونو موضـوع درک کړه چې دې وطن ته ښـه چوپړ څوک کولی شي نویې اشرف غني ته رایه ورکړه او ده دوباره د خارجي فشارونو له کبله له عبدالله سره واک شریک کړ ... چې پـه پـای کې د هېواد واحـده ټولنه په دوو ،لو و ویشـــل شـــوه چې څه برخه له عبدالله او ډیری له اشرف غني سره ودریدل پایله یې د هېواد اوســـنی حالت دی او دادی سږ کال بیا (۱۳۹۷) مختلف نوماندان ټاکنو ته دریږي ، خلک وار له مخه ښـــه پوهیږي چې رایه به څوک وړي ، ځکه دوی ډیر نوماندان تجربه کړي او هغه چاته به رایه ورکوي چې د هیواد ملي گټې پالي انشا الله .

**۳ـ تر جیحي یاداشت (Selective Retention)**

هغـه شـــیـان چې زمونږ لـه ذوق او فکر سره اړخ لگوي لوســـتـل یـا اوریـدل زمومږ خوښـیږي ، دا شـیان مونږ خپلې حا فظې ته سـپارو او د اړتیا په وخت کې گټه هم ترې اخلو، هغـه زده کوونکي چې ،د یوې ایـډیالوژي مخالف دی ، دی به هغه څه زده کوي چې د هغې خلاف وي ، کوم پیغام چې لیدونکو یا لو ستونکو ته رسیږي

دوی یوازې هغه څه خپلې حافظې ته سپاري چې دوی پکې دلچسپي لري ، او هغه څه هېروي چې دوی یې نه خوښوي ، او دا یو غیر شعوري عمل دي ، که تر جیحي یا داشت وي ، تر جیحي انتخاب وي او یا هم تر جیحي ادراک ،په دری واړو شکلو کې لـه نوي فکر څخـه ځـان ســاتـل ، د عـدم مطابقت ردول او چې مطابقت ولري خپلول ، پـه دې دری واړو حـالاتو کې یوازې زمونږ زوړ خیـال او فکر تقویـه کیږي ، بـدلون نه راځي ځکه مونږ د خپل زاړه فکر د تقویې لپاره بیا بیا دا عمل تر سره کوو او هر څه چې کوو خپل فکر رغوو.

## په علم او عمل کې عدم مطابقت ( Cognitive Dissonance)

د دې نظریې لـه مخې د کوم فرد پـه علم او عمل کې همغږي یا مطابقت نه وي نو دی په یو ډول ذهني کشمکش اخته کیږي ، یعنې دی یقین په یو څه لري خو عمل بیا بر عکس په بل څه کوي ، او لدې عمل څخه وروسـته دی دا احسـاس کوي هغه څـه چې یې کړي دي ســم نـه دي خو دی مجبور وي چې داســې وکړي او د دې مطـابق دی عمـل کوي ، چې پـه نتیجـه کې علم او عمـل تر منځ عـدم مطـابقـت ( Dissonance) را منځ تـه کیږي او ډېر لاملونـه لري ، چې یو څو یې فســتېنګز( Festings) په لاندې ډول ذکر کړي دي .

**د فستېنګر له نظره لاملونه :**

۱ـ د ټولنیزو ګټو تر لاسه کولو لپاره یو شخص داسې کړنې تر سره کوي چې د ټولنې نه بلکه د ده په ګټه وي ( شخصي ګټې) پالي .

۲ـ په ټولنه کې ځان په لوړ معیار او لوړ نوم تر لاسه او ښودلو لپاره .

۳ـــ د وېرې یا سزا څخه د ځان ژغورنې لپاره د انعام د د تر لاسه کولو په خاطر دا ځینې کارونه تر سره کوي .

۴ــــ که چېرې له دا سې مرحلې سره مخ شي چې له دوو يو ډول شيانو څخه بايد يو انتخـاب کړئ ، او لـه بـل څخـه تېر شـــئ ، پـه دې حالت کې هغه څه چې دی يې انتخابوي د هغه طرفداري کوي .

مثلاً : کله چې د سيګرېټو نښان (برانډ ) بد ليږي نو سيګرېټ څکوونکی له ستونزې سره مخ کيږي ، د مشاهدې له مخې زمونږ هڅه داوي چې که چېرې کومه رساله ، کتـاب يـا واعظ ( تقرير کوونکی ) چې زمونږ له فکر سره په ټکر کې وي ، او له عمر سره مو مطابقت ونه لري ، نو د امکان تر بريده يې له لو ســـتلو او اورېدلو تېريږو . زمونږ په هېواد کې د ټاکنو پر مهال دا په ډاګه شوې چې خلک يوازې د هغه چا په غونـډو کې ګـډون کوي ، چې دوی يې د خپـل فکر مطـابق ګڼي ، قومي يې وي ، ملګرتيا ورسره ولري او ياخم له کومه اړخه اړيکې سره ولري ، او ياهم په نسبي لحاظ سره تړلي وي . هغه لاملونه يا داســې شــيان چې يو څوک مطابقت ورسره لري ، په لاندې ډول دي .

۱ـ زه هغه څه وايم چې ، يقين پرې کوم .

۲ـ زه هغه څه کوم چې ، غواړم يې .

۳ـ هغه څه چې رد مې کړل حتماً بد وو .

۴ـ کوم نا وړه کار چې ترې وشي نو د هغه ښه والی له ځان سره زمزمه کوي .

پورتني څلور واړه حالتونه له لاندې مثالونو څخه درک کولای شو .

۱ــــ يو ځوان خپل ملګری داسې رستورانت ته له ځانه سره بوتلو چې هلته د خوراک بيه ډېره لوړه وه هغه ځوان پوره هڅه وکړه تر څو ثابته کړي ، چې په ګران بيه هوټل کې يې د خوراک پرېکړه سمه وه .

۲ــــ په ځای د دې چې سـيګرېټ څکول ترک کړي ، د دې عادت د روا والي او ښه والي لپاره د لائل وړاندې کوي ، مثلاً : اعصاب ارامومي ، دا دنارينتوب يوه نښه ده ، بې نشې سړی هيڅ دی او نور .

۳ـــ هغه شـخصيـ انگليسي ژبې مکتبونو ته د خپلو ما شومانو لېږل اکثره وخت والدين په ټولنه کې د نوم لپاره هڅوي چې د فلاني اولادونه په داسې يو مکتب کې دي ، درســونه يې په انگليسيـ ژبه دي ، دا ډول کيســې فقط د دې لپاره دي چې خلک دا ووايي چې فلانی په اولادونو مصرــف کوي ، او دې ته نه گوري د اولادونو يې څه زده دي او که نه .

۴ـ که يو څوک په کومه داسې ورځپاڼه کې کار کوي چې پخپله داداري له پاليسي سره اختلاف لري ، د ورځپانې د يوه کار کوونکي په صــفت هغه له دوو لارو هڅه کوي تر څود ا عمل روا ثابت کړي .

**اول :** هغـه دا ويلی شي چې څومره معـاش مـاته په دې ورځپاڼه کې راکول کيږي ، دومره بل چېرته څوک نه راکوي .

**دوهم :** هغه خپل ذاتي فکر له ياد مضمون سره همغږی کړي ، يو څوک سره له دې چې څـه يې دځـان لپـاره ټـاکلي دي ډېرې نيمگړتياوې لري ، پوهېږي او اراده لري چې دا نيمگړتياوې به لرې کوي خپل دا انتخاب به له لاسه نه ورکوي او خپله وعده چې د پوره کولو لپاره يې کړې هغه به پوره کوي او هڅه کوي ، په دې شــخص کې هم عدم مطابقت شتون لري ، سره له دې چې له ده سره د موجود شخص نظر له ده څخه مختلف دی ، مگر د خپل مقام د ســاتلو لپاره به يوازې د هغه شـی ښـه والی را څرگندوي ، دا خبره په يوه مثال کې واضــح کوو : هغه خلک چې د کورنۍ په مذهبي لحاظ سخت وي که هغوی ته ووايی چې نړۍ په فلاني وخت پای مومي نو هغوی دامني او سـمدسـتي نېک عمل او عبادت پيلوي ، بر عکس هغه کورنۍ چې په ديني لحاظ کمزوري وي هغوی دا خبره نه مني او وايی چې داسې نه شې کېدای په دې خبره حقيقت نه لري ، ولې داســې کيږي داســې کيږي . دا ، او دې تـه ورته مســـايل د يو کلي په دوو کورنيو کې توپير کوي ، حال داچې دواړه ويو ه کلي خلک دي .

## ټولنيزه مرسته تر لاسه کول :

کله چې يو څوک ګوري چې د ټولنې وګړي د ده له فکر سره تضاد لري او دی چې په څه يقين لري ، د ټولنې د نورو وګړو کردار او رفتار سره اړخ نه لګوي ، نو دی هم هڅه کوي تر څو ځان د ټولنې همغږه ،او همکاره شـخص ثابت کړي ، او دې هدف ته د رسېدو لپاره دی خپل عمل ، رفتار ، او کردار داسې کوي تر څو په ټولنه کې د خلکو د خوښـــې وړ وګرځي ، د دې هڅې په نتيجه کې د ده په فعل او عمل کې يو ډول تضـــاد رامنځ ته کيږي ، چې د "Cognative Dissonance" په علم او عمل کې د عدم مطابقت سبب ګرځي .

مثـال : هغـه مور پلار سره لـدې چې د انګريزي مکتبونو پـه بـــه والي او ګټه نه پوهېږي او مصـــارف هم نشيـ برداشـــت کولی مګر بيا هم خپل اولادونه انګريزي ښـــوونځی ته ليږي ، لامل يې دا دی چې دا ټولنه د انګريزي ژبې او کلتور تر اغېز لاندې ده او دا تاثيرات دومره ژور دي چې هر څوک د خپلې ژبې په ځېر د هغې د خپلولو هڅه کوي .

## ټولنيز معيـار :

ټولنيز معيـار هم پـه دې برخـه کې ډېره مهمـه ونـډه لري ، هر فرد دا غواړي چې هغـه خپل د ژوند معيار څومره چې امکان لري پورته کړي ، او بيا د ژوند لوړ معيار سره د مطابقت په هڅه يې د علم او عمل تر منځ عدم مطابقت پيدا کيږي . مثلاَ : هغـه واکمنې کورنۍ چې خپـل اقتصـــادي معيـار يې لوړکړ هغـه د ټولنيز معيـار د لوړولو هڅه کوي .

زمونږ ټولنه يوه اسلامې او سنتې ټولنه ده او خلک يې هم له مذهب سره ژور ارتباط لري ، دلته د ټولنيزې ازادۍ حدود معلوم دي ، چې په نتيجه کې د دوی په يقين او علم کې عدم مطابقت را منځ ته کيږي ، د عوض انعام د تر لاسـه کولو يا له سزا څخه د ژغورنې تدابير کله داسې هم کيږي ، چې د انعام يا ګټې لپاره له خپلې رايې

څخه په شا کيږي ، او د هغې د رايې  دخوښی اظهار کوي چې مونږ پکې ګټه وينو د زياتې برخې د تر لاســه کولو د هيلو لپاره همدومره زيات د عدم مطابقت پکار کيږي .

**د رجم البدل لټه :**

لـه دوو يو ډول څيزونو څخـه د يوه انتخـابول ، انتخـاب کوونکی د عـدم مطـابقت ښــکار کرځې ، د **برهيم** د وينا مطابق په مختلفو څيزونو کې څومره چې ورته والی وي ، همدومره يې مطابقت ډېر وي ، ديوې تجربې په جريان کې د شـيانو پر معيار تر يقين وروســته يوې ډلې ته د دواړو يو ډول څخه يو او بلې ډلې ته د داســې دوو شــيانو څخه د يوه د انتخاب وويل شــول چې يو کمتر او بل د بر تر معيار ځانګړتيا ولري ، د يو ډول ځـانګړتيـا وو لرونکی ګروپ لـه دواړو يو ډول ځـانګړتيـاوو لرونکو څخـه يو انتخـاب کړ نو د بـل د ځـانګړتيـاوو څخـه د ده په فکر کې عدم مطابقت راپيدا نه شو .

د فيسټيګر ( Festinger) د څېړنې له مخې د يو کار په جريان کې کله چې خلکو ته د بېلا بېلو درجو انعامات ورکړل شول ، نو دوی خپل تاثيرات داسې اظهار کړل چې ګويا دوی مايوسه شوي ، مګر د لوړ انعام تر لاسه کوونکي ، بيا پر خپل حق کې وؤ ، او غوښـتل يې دا پرېکړه روا او سـمه ثابته کړي ، د کم انعام تر لاسه کوونکي بيا پر خپـل مو قف ولاړ وؤ، د خپـل عمـل په حقايقو کې يې دلائل کم ورکړل مګر د عدم مطـابقـت يـادونـه يې زيـاتـه وکړه ، يقينې د علم او عمل تر منځ د عدم مطابقت د راکمولو لپـاره فرد هڅه کوي ، تر څو خپل فعل بهتر او لوړ ثابت کړي ، تر څو عدم مطـابقـت لـه منځـه لاړشي پـدې خـاطر دی خپلـه نظر هم بدلوي ، يا د نورو خلکو مثالونه وړاندې کوي ، او يا هم د منتخب څيز د ښــه والي په لټه کې وي ، دی به هر ډول هڅـه وکړي چې پيغـام ورکوونکي تـه بـد و رد ووايې ، عوض بـديـل د عدم

مطابقت په له منځه وړلو کې ډېر ارزښت لري کېدای شـې انعام معیاري او یا هم غیر معیاري وي .
له دې څخه په ډاګه کیږي کله چې مونږ غواړو خپل عمل درســـت ثابت کړو نو د خپل فکر او رایو د بد لولو هڅه کوو ، پدې وخت کې  که کوم داســـې پیغام مو تر لاسـه کړ چې زمونږ سره په فکري بدلون کې مرسـته وکړي نو فوري یې مونږ قبلوو ، دا پیغـام ډېر موثره  پیغـام وي ، یو څوک د خپـل علم لـه مخې پـدې پوهېږي، چې غاښـــونه باید په ورځ کې درې ځله برس کړای شي مګر دی یې یو ځل پاکوي ، کله چې دی وینې چې دیوه ټوټ بېسټ ( د غاښو کریم ) پّ اشتهار کې لیکل شوي دي چې یو وار په ورځ کې د کریم په وسیله د غاښونو پاکول کفایت کوي نو دی به فوراً پردې عمـل وکړي ، ځکـه چې دا اشـــتهـار د ده په فعل او فکر د عدم مطابقت په کمولو او د ده د دې فعل په درست ښودلو کې ښه رول لوبوي .

### د عـامه رایو لار ښود :

دعامه رایو په جوړښت کې رول لرونکي:
هغه خلک چې په عامه رایو د اغېز ښیندلو صلاحیت او ځواک  لري  فکري لار ښود بللکیږي.
 عموما هغه خلک چې عامه رایی اغېزمنولی شي په ســـیمه کې ځانګړی لوړمقام او لوړ ارزښت لري دوی د ټولو مسایلو په هکله
وایی Opinion leader) مسـتند معلومات , دلایل  او په ټولنه کې کره اعتماد لري ځکه خلک ورته  د یو فکري مشر
  پـه دې فاني نړۍ کې د هرانســـان  قدر په کار دی ،دعامه رایوپه جوړښـــت کې عموماً دنړۍ په کچه هغو وګړو ته ارزښت ورکول کیږي ،چې هغه په ټولنه کې

منلې با رســوخه او د يوښــه حيثيت خاوندان وي لکه ملي مشــهور وګړي ،قومې مشرــان ،متنفـذين اوســپين ږيري دوی تل په ټولنه کې دقدر وړ بلل کيږي ،ځکه داخلک له ملت سره په يوه ربښه اوتار تړلي وي.

دافغانسـتان په شـان ټولنه کې چې ډېری مسـايل دقومي مشرـانو اوسپين ږيروله لارې حليږي ،حتی پـه ملي مســايلوکې لوی رول لري ،دقومونو په منځ کې تړونونه هغه څه دي چې هېڅ څوک ترې سترګې نه شي پټولای ،بېلګې يې دهېواد په تېر او اوسني وخت کې ملي اوقومي جرګې دي چې مختلفوقومونو مشران دملي مسايلوپه حل کې څومره کردار اداکولی شي.

ددې لپاره چې د عامه رايو لاربشـود عامه رايی خپلې کړي د ټولنې مشـکلات حل کړي بايد لاندې کارونو ته کلکه اوږه ورکړي څو يې اعتماد نور هم محکم شي .

۱: دټولنې عامه رايی همغږې او موازي کړي

۲: دملي ګټو دساتنې او بشپړ تامين لپاره په ټولنه کې سياسي شعور پيداکړي او د دښـمنانو هغه مضر پلانونه ورته په نښه کړي کوم چې د ملت دپاشلو او نه همغږي سبب ګرځي.

۳: دملـت او حکومـت ترمنځ د جدايي او يو له بل څخه د نفرت هغه لاملونه چې د نه همغږي سبب ګرځي له منځه يوسي . او دواړه د ملي ګټو د ساتنې لپاره يو ځای په يو اواز او اراده کار وکړي.

۴: په هېواد کې د ټولو قشرـونو لپاره دښـوونې او روزنې زمينه برابره کړي او ددې هـدف لپـاره لـه حکومـت سره اوږه پر اوږه کـار وکړي ځکـه تعليم ټولنـه لـه ټولو بدبختيو او بد مرغيو څخه ژغوري

۵: پـه ټولو ټولنيزو چـارو کې بـايـد حکومت او ټولنه اوږه پر اوږه يو له بل سره ګام واخلي .

لاربښود باید عامه رایی دې ته چمتو کړي چې دهېواد په مادي او معنوي بیا رغونه کې کار وکړي څو د تل لپاره ټو لنه په بنسټیز ډول له کړاوونو څخه د خلاصون لار پیداکړي شي.

٦: د هیواد دښمنان تل غواړي چې د خپلو ناولیو موخو لپاره ټولنه په خپل منځ کې سره ښکیل کړي .

٧: دټولنې د مشـــکلاتو دحـل لپـاره باید له مختلفو حکومتي او غیر حکومتي ادارو څخه پنهٔ واخلي څو هغه مشـــکلات چې ټولنه یې لري حل شي او ټولنه له حکومت شره نژدې شي .

٨: لار ښــود باید ټولنه له هغو خطرناکو پروګرامونو او حرکاتو څخه باخبره وســاتل شي چې دښـــمنـان یې زموږ په وطن کې د پلي کېدو اراده لري څو خلک د هغو له اغېز لاندې رانه شي په هکله باید له علماوو مفکرینو روشـــنفکرانو او په حالاتو له باخبره کسانو سره مشورې وشي څو دهغوی مخنیوی وکړی شي او دهغو دمقابلې لپاره تیاری ونیول شي

- محمـد افتخـارحســـین دفکري لاربښـــود په هکله لیکي ! ددې لپاره چې یومفکر ټولنه ښه رهنمایي کړي باید لاندې ځانګړتیاوې ولري

١:په خپل مسلک کې باید ښه ماهر او تجربه ولري

٢:له مهمو ملي اونړیوالو پېښو باید باخبره او د لوړ تحلیل خاوند وي .

٣:په ټولنه کې لوړ ټولنیز شهرت او حثیت ولری.

۴:په ټولنه کې دباور او ښه اعتماد خاوند وي .

۵:په ټولو مسایلو کې بې طرفه او تل د ملي ګټو طرفداروي.

٦: دټولنې د ملی ، عقیدوي ،او کلتوري نوامسو پالونک او ساتونکی وي.

٧:له ملي او نړیوالو قوانینو څخه باخبره وي

٩: دښو اوکره اخلاقو خاوند ، د پراخ نظر صبر او زغم څښتن وي

که چیرې په یو هېواد یاسـیمه کې یو فکري لار ښـود ذکرشـوې ځانګړتیاوې ولري حتمي ده چې خپله ټولنه به په هره برخه کې لوړو پوړیوته رسوي

د عامه رایو دجوړښت مرحلې

لومړۍ مرحله :

په دې مرحله کې ټولنه له یوې ستونزې مخا مخ کیږي

دوهمه مرحله :

په دې مرحله کې د سـتونزې سـختي او جدیت معلومیږي چې سـتونزه څومره سـخته ده ؟ څومره اغیز یې په خلکو ښیندلی دی دخل او فصل لارېې شته که نه .

دریمه مرحله:

په دې مرحله کې خلک د موضوع په تړاو موافق یا مخالف نظر ته رسیږي

پـه دې پړاو کې ټولنـه دیوې پریکړې کولو او عملي کوو تـه متې را نغـاړي دقاغد په مخ لیکل کوي یا داسې تړون کوي چې باید یوې ځواکمنې فیصلې ته دعمل جامه ور اغونځي

۳ـ په ټولنه کې د عامه رایو د زعیم اهمیت .

د عمه رایو زعیم هغه وسیلې کاروي چې د نورو په نسبت ډېرې ګټورې وي او د خلکو فکرونو ته په فوري ډول تقویت ورکړلی شي ، د پیغام تر لاسه کوونکی له دې مر حلې څخه تیریږي او بیا هغه د پیغام تر لاسه کولو پر مهال له هغې مر حلې څخه تېریږي ، چېرته چې دی باید خپله رایه قایمه کړي .

په دریمه مر حله کې هغه فوراً د کوم څه په اړه خپله رایه قایموي ، د کوم شي په اړه د تاکید په برخه کې ذاتي اړیکه ډېره موثره وي نو د خپلو ټولو خامیانو با وجود په هېڅ ډول د عامه رایو د زعیم ارزښت نشو کمولی ، ځکه چې د ده د نه موجودیت په صورت کې به دارتباط پروسه په ټپه ودریږي .

د ار تباط ( اړیکې ) د وسیلو څارنه او کنترول

د اړیکو وسایل دومره قوي اټکل کیږي ، چې د همېش لپاره د عامه مفاد په برخه کې کارونه اړین ګڼل کیږي ، ځکه چې تاثیرات یې په عامو خلکو او عامو ادارو کې دومره ژور دي چې په بېلا بېلو ټولنو کې د دې څارنه او کنترول ډېر اړین ده .

رچرډ سانسټ وايي : "خبر د خلکو په مغزو کې ځاله جوړوي ".

د خلکو په چال چلند ، کردار او رفتار کې بدلون یا د دوی په رایو کې له ما شومتوب څخه له مختلفو ادبیاتو او یا له تعلیمي موادو څخه یې تر لاسه کړي وي . به بعضې ټولنو کې حکومت د پیغام رسونې دنده پر مخ وړي،یادحکومت په کنترول کې د زور واکو مداخلت او یا هم د ښکاره سنسرشپ د ممکنه سیاسي ، ټولنیز خطر پر وړاندې د غبرګ پورته کولو پر مهال د حکومت له لوري قانوني بندیز له امله پوره معلومات تر مونږ نه را رسیږي ، بعضې وخت د شخصي مفاد په خاطر په حقیقت سترګې پټوي ، د خبرونو د حصول په وسیلو کې خوښه او نا خوښه ډېر دخل لري .

د اړیکو د وسایلو څارنې ( Gate Keeping ) له امله اطلاعات متاثره کیږي .

د عامه اړیکو وسایل ډېر منفي اغیز پرېږدي ، د ډېرو پوهانو په اند چې د دې پر مټ حقیقت معلومول ستونزمن کار دی ، ځکه چې د پیغام لیږد له بېلا بېلو وسیلو څخه کیږي ، له کورنۍ او بهرنۍ وسیلې څخه بې شمېره معلومات وړاندې کیږي ، کله کله د ار تباطي وسایلو د اغیز له امله ځینې خلک د خپلې ټولنې له خلکو سره مخامخ اړیکې ونه لري تر منځ یې یو ډول فاصله ایجادیږي ، د خلکو خپل منځي اړیکې ، ناسته پاسته او راشه درشه متاثره کیږي ، مثلاً : T.V دارتباطي وسایلو ارزښت ته په کتو په مختلفو ټولنو کې په بیلا بیلو ډولونو د هغوی د کنترو لولو اړتیا پیدا شوه ، په مختلفو ټولنو کې د اړیکو په جریان کې مختلف نظریات درلودل چې په لاندې ډول یې لنډ واضح کوو.

## لرغونې ټولنه

دا د ټولنې ابتدايي ډول ده ، پدې ټولنه کې د لوست کچه په نشت حساب وه نو مونږ دې ته قبایلي ټولنه ویلی شو ، له قبایلي ټولنې څخه موخه داسې ټولنه چې د نوي تمدن څرک یې هم نه وي لیدلی ، داسې ټولنه اوس په نړۍ کې نشته حتې چې د افریقا په ځنګل کې چې کوم قبایل اوسیږي ، هغوی هم په مکمل ډول په لرغونې

ټولنه کې نه شو حسابولی ، ځکه چې اوس تر هغوی پورې د نوي تمدن څرک ور رسیدلی ده ، مثلاً : هغه اوس ښکار په تیرو نه کوي ، او ورې اصلحې کاروي د لوست کچه پکې دېره کمه ده . په ابتدایې ټولنو کې به خبرې خوله په خوله کیدې او د پیغام رسونې همدا طریقه وه بنه یې عمودي وه .

**د منځني پير ټولنه :**

پدې ټولنه کې قدیمه ټولنه ورو ورو د زوال په لور درومي او خلک بدلون ، او نوی توب خوښوي ، دا ټولنه د لرغونې او نوې ټولنې په منځ کېشتون لري ، د دې ټولنې خلک خپل تمر کز په ښارونو کوي ، زمونږ هیواد هم پدې ټولنه کې راځي ځکه چې دلته هم خلک د کر کیلې پر ځای په ښارونو کې کار کولو ته ترجیح ورکوي ، د تعلیم کچه یې هم لوړه وي ،په دوی کې د تجسس عنصر ورو ورو پیاوړی کیږي اطافي خلک زده کړې ته مخه کوي .

چې له امله یې د ورځپانو لوست ته هم ډېری خلک مخه کوي ، ځینې خلک یې بې سواده وي ، پداسې ټولنه کې دری واړه ار تباطي وسایل کار کوي ، ( ورځپاڼه ، راډیو ، او تلویزیون ) خو نسبتاً رادیو نورو ته ډېره اوربدل کیږي ، سیاسي نظام تر یوه حده پکې ازاد وي د خلکو اقتصادي وضعه نسبتاً ښه وي .

**نوې ټــــــولنه :**

د نوې ټولنې ښه مثال امریکا ده ، په دې کې د لوست تناسب ۱۰۰٪ده هلته د لسو تنو پر سر یوه ورځپاڼه چاپ کیږي ، تقریباً ټول خلک یې کارکوي ځوانان یې تر ډېره انتظامې او صنعتي کارونه خوښوي تلویزیون پکې د ار تباط بهترینه وسیله ده ، له ۱۸٪ ـ ۲۰٪ خلکو پورې یې تلویزیون ګوري ، ماشومان یې ټول مکتب ته ځي او د ایکو سیستم یې منظم او ښه پیاوړی دی دی .

عامه رایو ته ډېر د قدر په سترګه کتل کیږي ، خلک یې په سیاست او انتخاباتو کې په لویه کچه برخه اخلي ، د بیان ازادي او ټولنیزې ازادي ته حق اولیت ورکول کیږي

د ژوند ټولې اسانتیاوې لري ، په هره برخه کې بې شمیره پوهان او مسلکي کسان لري ، پیغام تر ډېره بریده پر حقایقو ولاړ وي عمل او عکسالعمل یې پر حقایقو ولاړ وي خو د ټولې نړۍ د ذخیرو او زیرمو دلاس ته راوړلو لپاره یې د ټولې انساني نړۍ د وژلو ، لاندې کولو او لاس ته راوړلو هوډ لري په دې اړه بیا هیڅ انساني کرامت او حق ته احترام نه لري د منځني ختیځ اوسنۍ جګړې او د د مظلومو فلسطینیانو وژل ، او ظلم هغه څه دي چې د دوی دبشري ازادۍ او انساني کرامت د نه احترام موضوع ثابتوي .

غواړم چې د هر ډول ټولنې ځانګړتیاوې په لنډ ډول ولیکم .

**دلرغونې ټولني ځانګړتیاوي**

۱ : په دي ټولنه کې د اړیکونظام منظم شکل نه لر ي.

۲ : په دي ټولنه کې علما ، پوهان او مسلکي کسان نه وي .

۳ : په دي ټولنه کي ژبنۍ اړیکې ډیرې ګټورې وي.

۴ : خلک په ازاد ډول ناسته پاسته نه سره لري.

۵ : ارتباطي وسیلې ازادې او خودمختارې نه وي.

٦ : د پیغام حدود محدود وي.

۷ : په داسې ټولنه کې د خبر په حقیقت او صداقت ترډیره بریده شک کیږي.

۸ : په دې ډول نظام کې ځوابي غبرګون نه وي

۹ : چیرې چې مواصلاتې نظام نه وي هلته اعلان د نغارې په وسیله کیږي

دمنځني پیرټولنه : ځانګړتیاوې

۱ : په دې ټولنه کې داړیکو نظام د پخوانۍ ټولنې په پرتله منظم وې

۲ : په خپلو منځوکې د کلیو رابطه کمه خود ښارونو سره ډیره وې

۳ : له ښاري پراختیا سره سره کلي هم پرمختګ کوي

۴ : سرمایه غیرمتوازنه پاتې کیږي ځکه چې د استعمال وسیلې یې غیرمحدودې وي

۵ : دهرې برخې پوهان پکې کم وې
٦ : د پیغام سرعت د پیغام په وسیلې پوري اړه لرې چې داوسیله څومره چټکه ده .
۷ : سیاسې نظام تریوه بریده ازاد وې
د پخوانۍ ټولنې په نسبت د خلکو اقتصادي حالت ښه وي ، مګر د نوې ټولنې په نسبت کمزوری وي .
د نوې ټولنې ځانګړتیاوې
۱ـ په دې ټولنه کې د ارتباط نظام شتون لري ، او د رایو ځانګړی قالب لري .
په دې ټولنه کې اړیکې په دو ډولونو نیول کیږي ، اول د ډلهییزو ارتباطي وسایلو له لارې چې منظم سیستم لري او مخامخ خوله په خوله اړیکه صورت نیسي ، دویمتیر وخت د فاصلې کړاو یې دتل لپاره له منځه یوړ او دوهمه مرحله د ارتباط له زاړه نظام څخه شمیرل کیږي چې انسانان مخامخ یو له بل سره اړیکې ساتی .
۳ـ په دې ټولنه کې پوهانو ته ډیره اړتیا وي ځکه د دې عصر پرمختګ په علم ، تکنالوژي ، ساینس او تجربو پورې تړلی دی .
۴ـ د عامه اړیکو نظام ډېر ازاد وي هر څوک چې څه کول وغواړي کولی یې شي .
۵ـ په دې ټولنه ټولنه کې عامه رایو ته ځانګړی ارزښت ورکول کیږي ، حکومتونه د عامه رایو په اساس جوړیږي نو ځکه خو ټول وګړي د حکومت په جوړولو کې شریک وي ، نو له همدې کبله دچارواکو او عوامو تر منځ ځانګړی توپیر نه تر سترګو کیږي
٦ـ په نوې ټولنه کې پوهان، عالمان ،با تجربه او مسلکي کسان ډیروي .
۷ـ ازاد سیاسي نظام لري هر څوک د خپلې خوښې ډلې ګروپ یا نوماند ته رایه ورکوي .
۸ـ د پیغام دلیږد ساحه ازاده او پراخه وي .
۹ـ د څیړنې او تحقیق له عمل نه ډېره ګټه پورته کیږي ځکه خلک هوښیار د موضوعاتو به اړه ژورو پلټنو ته اړتیا لري .

۱۰ـ پیغام ترډېره پر حقایقو ولاړ وي څو د مسایلو تل ته لار پیداکړي .

۱۱ـ د ډله ییزو اوټولنیزو ارتباطي وسایلو له برکته پیغام ژر ترخلکو رسیږي .

۱۲ـ اړیکې به منظم شکل او ترتیب سره تر سره کیږي .

۱۳ـ ټولې کړنې په ګړندۍ توګه تر سره کیږي .

## دوهم فصل

### د اړيکو مهمې وسيلې:

انســان دلوی خدای يو ډېر لنيز مخلوق دی ، ژوند يي دټولنې دنورو غړو په شــتون کې خونـدي او تـامين دی ، کـه ټولنه نه وي نو ژوند يې ټکنی کيږي او بالاخره له لويو کړاونو سره مخامخ کيږي .

رب العزت ج خپلو بندگانو ته امر کوي چې تاســو دخپل ســالم او دايم کامياب ژوند لپاره يو له بل سره اړيکې ولری څومو ژوند هوسا او ارام وي .

ياايهالذين امنوالصبروا صابروا ورابطوا لعلکم تفلحون .

ای دايمان خاوندانو ! صــبروکړی ،او په صــبر نورو ته توصــيه وکړی او يو بل سره اړيکې وساتی شايد تاسو کامياب شی.

د الله په پورتني کلام کې د انسانانو د ژوند او اړيکو ټول رازونه پراته دي ، که موږ انسانان دخپل ژوند د سهولت او خوښي لپاره له الهی احکامو سالم کار واخلو ممکن دژوند له ټولو کړاوونو څخه په ښه ډول ځان را وباسو او هر گام به ثابت او قايم وي مشــکلات بـه مو حـل وي . يو لـه بل سره به مو همکاري کړې وي په پايله کې به موژوند هوسا او ارام وي او د لوی خدای په امر به مو عمل کړی وي .

څرنگه چې اړيکې د انســانانو د بقا لپاره د هوا په شــان ضروري او لازمي دي نو د نظريـاتو، عقـايـدو،افکـارو، اطلاعاتو اومعلوماتو د تبادلې او انتقال يو ضروري عمل دی، خو د سر ته رسولو لپاره يې مختلفو وسيلو (منابعو) ته ضرورت دی، چې عموماً لاندې څلور وســيلې د ارتباط په ټنيگولو کې مهم اســاسي او کليدي رول لري، چې عبارت دی له :

**۱: ژبه ۲: اشارې اوعلامې(نښې) ۳: څېره ۴: تحرير (ليکنه ) څخه.**

**۱: ژبه** (Language a Source of Communication)

ژبه یو الهي نعمت دی، چې انســـان د خپل زړه رازونه ، د دخپلو دماغو ایجاد ، او دضمیر اواز مخامخ بل انسان ته لېږدوي او ور سره شریکوي یې او دغه د افهام او تفهیم لوړه ، بهتره او اغېزمنه وســـیله د دلوی خدای له کرم او مهرباني څخه ده، چې په ټولو کایناتو کې یې یوازې انسـان ته چې اشرف مخلوق دی ور بخښـلې ده ، د همدغې ژبې برکت دی، چې انســانان په خپل منځ کې مختلف علمونه، کســبونه او معلومـات یو بـل تـه انتقـالوي، څو وکولی شي چې د تیرو انســـانانو له کارونو، تجربو ،علومو او کـارنـامو څخـه ګټه واخلي او د خپل ځان لپاره د ژوند ســـهولت برابر کړي.

ملي ژبې :

ملی ژبه د یو ملت د ملي تشــخیص او هویت په برخه کې مهم رول لري، له همدې کبلـه ملتونـه هغه ژبه د ملي ژبې لوړ مقام ته رســـوي، چې د هېواد اکثریت وګړي پرې غږیږي.

امیر شېرعلي خان د سید جمال الدین افغان په سپارښتنه پښتو ژبه د هېواد د ملي ترمینالوژۍ لپاره وکاروله. په افغانستان کې پښتو عامه او د هېواد اکثره وګړي پرې خبرې کوي، دا د هغو احصـایو له مخې چې د ایران، روسـیې، نړیوالو علمي ټولنو او د یونســکو له خوا خپرې شــوې دي، پښــتو ملي ژبه بلل شــوې خو دا بیا د ژبې په ویونکو پورې اړه لري چې څنګـه یوهې ژبې تـه ملي بڼـه ورکولی شي . ملي ژبـه حق لري چې د هېواد ملي سرود، ملي شــعارونه، عناوین، ملي ترمینالوژي او نورې ټولې تشریفاتي چارې پرې اجراء او د ملي هویت وثیقه وګرځول شي.

دژبې په هکله علماوو مختلفې په زړه پورې خبرې کړي او داسې یې راپېژني:

**جان لاک** ژبه د ټولنې د ژغورنې وسیله بولي،.

**پوهاند الهام** ژبه د انسـاني غږونو یو زمري سـېسـتم بولي،چې د ټولنې غړي يې د مفاهمو لپاره کاروي. (21: 18).

**د ا ردو ژبې پلار مولوي عبدالحق وایي:** ژبه هغه وسـله ده چې د هغې په واسطه موږ خپلې خبرې نور ته رسوو.

**پروفیسـور سـید وقار عظیم وایي:** ژبه صرف د حروفو مجموعه نه ده، بلکې دا د دود او کلتور د اظهار وسیله ده.

**ډاکټر سید عبدالله** وایي: ژبه یو معمولي شی نه ده، داپه ډیرو وختونو کې د کمال پړاو ته رسیږي او د خپلو ویونکو د مافي ضمیر اواز ظاهروي. (6: 25).

**شـوکت سبزادي لیکي:** ژبه د یو قوم او ملت کلتوري، ثقافتي، عقیدوي، علمي او ادبي سرمایه ده، چې قوم او ملت پرې فخر کوي. (5: 24، 27).

**سارا سعادت لیکي:** ژبه د کلتور هېنداره د یوه قام او ملت د پېژندنې وسیله ګڼل کیږي نو له دې امله ژبه د بشریت په تاریخ کې ځانګړی لوړ مقام لري. (10: 176).

او محترم اسـتاد **پوهاند حبیب الرحمن هاله** لیکي چې: (ژبه د انسـانانو تر منځ د پوهولو او راپوهولو هغـه بهترینـه ارتبـاطي وسـلـه ده، چې د زړونو رازونـه سره شریکوي).

**او زمـا په نظر ژبه دیو ملت** هغـه معنوي نعمت دی چې له برکته یې په نړۍ کې دنورو ملتونو تر منځ دیو معلوم اوسر لوړي قوم پـه توګه پیژندنه کیږي ، او د اړیکو هغه وسیله ده چې له برکته یې انسانان خپل افکار ،عقاید ، تجربې ، نظریات او علوم له نورو وګړو سره شریکوي .

ملی ژبه د یو ملت د ملي تشـخیص او هویت په برخه کې مهم رول لري، له همدې کبلـه ملتونـه هغه ژبه د ملي ژبې لوړ مقام ته رسـوي، چې د هېواد اکثریت وګړي پرې غږیږي.

لنـډه داچې ژبـه دیو ملـت او قوم علمي، ادبي، فرهنګي، کلتوري سرمایه او د خپلو ویونکو د مـافي الضـــمیر ترجماني کوي. ژبـه د یوې میاشـــتې، کال، ورځې پیداوار (حـاصـــل) نـه دی، بلکې پېړیو، پېړیو وخت او مزل ته ضرورت لري، چې د ټولنې د فخر وړ او تـاریخي حیثیـت لاس تـه راوړي. پـه نړۍ کې د ژبو تعداد کم وي او که زیات، مګر بیا هم ژبه د ارتباط په ټینګولو کې لومړی مهم او اساسي نقش لري.

## دژبې ارتباطي ارزښت:

- ژبه د اړیکو (ارتباط) مهمه وسـیل ده، ځکه انسـان مسـتقیماً (مخ په مخ) یا د ډله ییزو رسنیو له لارې خپل افکار، نظریات، اطلاعات ، تجربې اوعقاید نورو انسانانو ته انتقالوي؛نو ځکه ژبه د اړیکو په ډګر کې مهم رول ادا کوي.

- ژبـه د افکارو او نظریاتو د ظاهرولو اله ده، د نړۍ هر ملت ځانګړې ژبه لري، چې ملي ژبـه یې بولي، هره ملي ژبه خپلو ویونکوته ته ځانګړي افتخارات او ویاړونه ور ښـي چې د تاریخ په غیږ کې خانګړی ارزښت او خای لري .

- همدغه ژبه ، د ژبې ارزښت ، کمال ، انساني کرامت او پوهه ده، چې انسان ته یې پـه نورو حیوانـاتو فوقیت او برتري بخښـــلې ده . خدای فرمایي : په تحقیق سره ما انسان مکرم پیداکړی دی.

همدا رنګه فرمایي: لقد خلقن الانسان فی احسن التقویم .

ژبـه یوازې د حروفو مجموعـه نـه، بلکې د عنعنـاتو او دودونو، د زړه د رازونو د اظهارولو وسیله، د ملتونو دکلتور، علمي او ادبي سرمایه ده، چې د قوم د ویاړونو او افتخـاراتو ســبـب ګرځي او دنورو ملتونو به منځ د یوې ویاړلې لوړې ونې په شـــان ځلیږي .

- ژبـه د یو قوم د علم، ادب، ټولنیزژونـد، فرهنـګ او ثقـافـت ترجماني کوي، ژبه د یوې ورځې، میاشـــتې، او یو کال محصـــول نه ده، بلکې په پېړیو، پېړیو کې منځ ته

راځي او له منځه وړل يې هم پېړيو ته ضرورت لري ، ديويشـــتمې پيړۍ د اطلاعاتو او معلوماتو زېښونکي شامار يې هم له لوی کړاوسره مخ کړی .

- دژبې په وسـيله انسـاني اذهان، افکار، احسـاسات، خيالونه، معلومات ، تجربې او اطلاعات نورو ته په ډېره اسانۍ سره انتقالوي، د چاپيريال له حالاتو سړی خبريږي، او انسان تر اغېز لاندې راولي، انسان د ژبې په وسيله له مختلفو موضوعاتو څخه په صحيح توګه خبريږي، ځکه د اشارو، علامو په وسيله هېڅکله انسان سل په سلو کې نه شي پوهېدلی، مګر د ژبې په وسـيله امکان لري سـل په سلو کې (په بشپړه توګه) پوه شي، د همدې ارزښت او کمال له برکته ژبه د اړيکو مهمه وسيله ګڼل کيږي . يوازې ژبــه ده چې دوه اړخيز او پراخــه ارتبــاط ټينګوي او د براخوالي غيږ يې هم نسبت نورو وسيلو ته لويه او وسيع وه.

**نديم الحسن (2008)** ليکي چې:

(د نړۍ په مشـــهور کتاب Many Voice One World د څېړنو مطابق د ارتباطي ژبو د ويونکو شـمېر زښـت زيات دی، په ټوله نړۍ کې تقريباً (5000) شا وخوا ژبې ويل کيږي، خو تحريري ارتباطي ژبې له 500 څخه نه زياتيږي).

ځينې ژبې د معلومـاتو د خپرولو، تيتولو، حـاصـــلولو او انتقـالولو په لاره کې لومړۍ مقام لري، خو 16 ژبې په هغو کې داســې دي چې له ســلو ميليونو انســانانو څخه زيـات خلـك وربـانـدې خبرې کوي، چې عبارت دی له **چيني، انګليسيـــ، روسي، هســـپانوي، هندي،پرتګالي، بنګالي، جرمني، جاپاني، عربي، اردو، فرانســـوي، فارسي، کشميري، مولي، بهاشي، ايټالوي، تيلوګا، پښتو او تاملي ژبو** څخه. (14: 10، 16).

همدا رنګه ناصر حفيظ، ابو واجد شـيخ (2007) په دې اړوند زياتوي،: (په نړۍ کې د ژبو شـمېر ډېر دی، مثلاً د افريقا په براعظم کې په (1250) ژبو خلك خبرې کوي، په اروپا کې (28) رسـمي ژبې تايد او منل شـوي دي، مګر Eru English يې رسـمي

ژبه ده، د جنوبي اســیا خلك تقریباً له (23) ژبو څخه کار اخلي، په هند کې (1650) ژبې استعمالیږي.)

د ژبو پوهـانو ژبه له ژوندیو شــیانو سره د ارتباط په ټینګولو کې په دوه ډولو(برخو) وېشلې ده.

(1) د انسان په ژبه ارتباط (2) د حیوان په ژبه ارتباط

**(1) د انسان په ژبه ارتباط:**

انســـان د خدای ج یو افضـــل او بهتر مخلوق دی، ځکه چې الله ج په خپل کلام کې فرمایي چې (وَلَقَدْ كَرَّمْنَا بَنِي آدَمَ) ژباړه: په تحقیق سره ما انســان عزتمند پیدا کړی دی. نو اللـه ج دغـه بهتر مخلوق ته د ارتباط د ټینګولو او د خپلو غوښـــتنو د پوره کولو لپاره بهتره وسیله (ژبه) هم د نورو موجوداتو په نسبت ورکړې ده انسان وکولی شي خپله هغه اسـاسي دنده چې الله ج ورته سـپارلې په دقیقه توګه سرته ورسـوي، چې عبـارت دي لـه دعوت او رســـالـت څخه ځکه چې الله ج د پیغمبر حضرـــت محمدصلی الله علیه وسلم امت ته وایي چې (تاسو بهتر د امتونو یاستئ، راویستل شوي له خلکو څخه چې امر وکړئ په نېکو او منع کړئ خلك له بدو څخه.) د الله ج ټولو پیغمبرانو ته همدغه دنده ورکړل شـــوې وه، چې تاســـو خلك د الله ج لوري ته راوبولئ.

کله چې موسی او هارون (ع) فرعوته ته د دعوت لپاره ولېږل شـــول نو دوی ته الله تعالی وویل: چې (دواړه په نرمۍاو ښه بڼه خبرې ورسره وکړئ) (1: طه، 44)

او اللـه ج حضرـــت محمـد تـه فرمایي: رابوله خلك د خدای ج دلارې ته په حکمت، نېکه موعظه او بهتره طریقه (1: انحل، 125).

همدارنګه د انسـاني ژبې اوعفت د سـاتنې په هکله الله تعالی مسلمانانو ته فرمایي: (بنده ګان د رحمان هغه کسان دي چې ګرځي دوی په ځمکه په ورو (په توضیع) او کله چې جاهلان اوناپوهان د دوی سره خبرې کوي نو (وایي ورته په ځواب کې سلام

خبره) ســالمـه (لـه گنـاه او ضرر څخـه) الفرقـان 63د لـه دې ایـت شریف څخـه معلومیږي چې ښــه برخورد پایله ډېره خوږه اغېز لري او په اســلامي ټولنه کې دا د اخلاقو یو بهترین اړخ دی.(8: 44، 45)

څنگه چې الله ج انســان بهتر پیدا کړی، نو یې د ارتباط وســیله هم بهتره ورکړې او همدارنگه یې دنده هم له نورو مخلوقاتو څخه غوره بهتره او لوړه ده. بایدانســان له دغې ارتباطي وسیلې څخه داسې کار واخلي لکه چې الله ج فرمایي چې

(وَمَنْ أَحْسَنُ قَوْلاً مِّمَّن دَعَا إِلَى اللَّهِ وَعَمِلَ صَالِحًا وَقَالَ إِنَّنِي مِنَ الْمُسْلِمِينَ)

ژباړ: او له هغه بنده څخه ښــه خبره د چا کېدی شي چې د خدای تعالی لورته بلنه کوي او وایي چې زه خپل خدای ته تســلیم یم (13، حم، ســجده 33.) چې انســان وکولی شي خپل نظریات معلومات، عقاید، افکار او الهي اوامر نورو ته په ډېره ښــه لوړه کچه او اعلی طریقې سره سرته ورسوي.

انسـان د خدای ج یو ټولنیز، د عقل او پوهې خاوند متجسس مخلوق دی، تل په دې هڅه کې وي چې د ځان او ټولنې لپاره د خیر او ښــېگڼې کارونه وکړي، د انســاني نړۍ لارښـود د حضرت محمدصلی الله علیه وسلم فرمایي: (بهتر د انسانانو هغه څوك دی، چې خلکو ته یې نفع ورســیږي) نو انســان باید د ځان او خلکو د ښـېگڼې لپاره کار وکړي.

د انســان او حیوان تر منځ بل اســاسي توپیر دا دی چې انســان د خپل ضرورت په وخت کې د مشکل د حل لپاره ارتباط ټینگوي او دغه کار په خپله ژبه سرته رسوي، چې کټ مټ پیغام مقابل کس ته انتقالوي، مخاطب دده د احســاس او غوښــتنې مطابق عمـل کوي، پـه پـایلـه کې هـدف تـه رســیږي، چې ارتبـاط پـه مکمله توگه قایمیږي.

## د انسان له خپل ځان سره ارتباط

(Intra- Personal Commnication)

په خپله له ځان سره خبرو (ارتباط) ته خو د کلامي ارتباط وايي، چې قه قصدي اوغير قصــدي توګه باندې امکان لري، چې له خپل ځان سره رابطه ونيسي ــ، دې ډول کې انســـان له خپل ځان سره رابطه نيسي ــ او په خپل ځان کې پيغام ليږي، چې دې ته ذاتي ارتبـاط هم وايي، همدا رنګه د راډيو، TV. ټيپ او نورو شـــيانو اورېدل په دې ډول ارتباط کې راځي او دا ډول ارتباط په لاندې برخو وېشل شوی. (7: 3).

(1) ژبنۍ اړيکې .

(2) بې اوازه (بې غږه) اړيکې.

(3) نامعنا اررېکې

(4) تحريري اړيکې.

(1) **ژبنی اړيکې** : وينا، تنها ســوچونه، له ځان سره خبرې، په لوړ اواز د ســبق زده کول، خپل ځان ملامتول، مختلف لوی او واړه ســوچونه او داســې نور مختلف ذهني مسايل په ذاتي (خودکلامي) ژبني ارتباط کې راځي.

**(2) بې مانا اوازونه:** انسان د خدای ج ضعيف مخلوق دی، کله، کله چې فشار، غم، زحمت پرې راشي، د ضــعف، خفګان يا تکليف له کبله مختلف بې مانا اوازونه باسي، لکه بنګېدل، زګروېدل، هو های، د وړو ماشـــومانو مختلف اوازونه، هه، هه، هه....نور

**(3) بې اوازه ارتباط:** د مختلفو مجلسـونو په جريان کې کله، کله، انسـان په يو فکر کې غرق لاړ شي، البتـه ظـاهراً پـه مجلس کې وي، مګر پـه ذهني ډول پـه نوره

نړۍ کې ګرځي، په خپلو مختلفو اعضاو باندې مختلف حرکتونه کوي، لکه سترګې، لاسونه، د ګوتو ټکا او داسې نور په دې ډول ارتباط کې راځي. (14: 8).

(4) **تحریري ارتباط:** د نړۍ مختلف ساینسدانان، عالمان، ډاکټران او پوهان مختلف تحقیقونه او څېړنې کوي، د هېواد او نړۍ مختلف وسایل د کتاب، ورځپاڼې یا نېټ په ذریعه نورو انسانانو ته رسوي، چې هغوی ترې ګټه واخلي، دا ډول ارتباط یومهم ضرورت او په زړه پورې ګټو ارتباط دی، وګورئ په نننی عصري نړۍ کې کتابونه، مجلې، ورځپاڼې او نورې ډله ییزې رسنۍ د انسانانو د پوهې او شعور د لوړ والي لپاره څومره کار کوي. پورتني ټول ډولونه په ذاتي ارتباط کې شاملیږي، چې د انساني نړۍ د پرمختګ او د ژوند د بقا لپاره ضروري او لازمي ګڼل کیږي.

## له حیواناتو سره ارتباط

(Communication with Animal)

الله ج حیواناتو ته هم د دوی په اورونو کې یوه ځانګړنه ورکړې ده، چې دهغې په اساس خپلې غوښتنې څرګندوي او انسان یې په معنا نه پوهیږي، مګر ارتباطي مقصد ترې اخېستلی شې. لیاقت علي (2008) په دې اړوند لیکي: کله چې په کور کې د غوا یا وزې د لوشلو وخت شي وږې او تږي شي نو رمباړې وهي، مېرمن یې پوهیږي، چې د غوا یا وزې د لوشلو، اوبو ورکولو او یا د وښو د اچولو وخت دی، نو فوراً پورته کږي او د حیوان ضرورت پوره کوي. همدارنګه کله، چې د چرګې د هګۍ د اچولو وخت شي ځانګړي اوازونه کوي، مالك یې پوهیږي چې د چرګې د هګۍ د اچولو وخت دی . همدارنګه کله چې کوم کوم حیوان له خپلې ډلې جدا شي ځانړي اوازونه کوي، مالك یې په اواز پوهیږي، چې څه چل دی او کله چې زاڼې له خپل قطار څخه پاتې شي مخصوص اواز کوي، چې په هوا کې ځان ته روانه وي او ټول مخلوق پرې پوهیږي، چې یوازې ده او خپل قطار ورڅخه ورك دی. (16: 25).

## د ژبې ارتباطي او اجتماعي ارزښت

(Commnication & Social Importance of Language)

پـه دې خبره ټول علماء متفق دي، چې ژبـه د ارتبـاط یوه اهمه او بهتره وســله ده، نورې وســیلې یې ځان په دې ډګر کې نه شي نیولی، ځکه د ژبې په وســیله انســان کولی شي د خپل مقصـد، پیغام، معلومات، اطلاعات اوغوښـنې کټ مټ بل انسان تـه انتقـال او هدف ته ورســیږي د ژبې د همدې ارزښــت له کبله اوس به نړیوالو کنفرانسونو کې اتوماتیک کاشینونه راوتلي ، دنړۍ د مختلفو ژبو څخه همزمان متن او ویناوې ژباړي څو ناسـت کسـان په خپلو منځونو کې نظریات په منظم او سـالم ډول سره تبادله کړي ، نړیوالو ، سـیمه ییزو او نورو پیچیده مغلقو موضوعاتوو ته د حل سالمه او منظمه لار پیدا کړي .

دا چې ژبـه دومره مهمـه ده نو دموضــوع د لاروښــان لپـاره یو څـه نور معلومات وربانديې زیاتوو، چې ښه روښانه او وسپړل شي.

## ژبه داړیکو مهمه وسیله ده

(Language is important source of communication)

ســیف الرحمن (2009) لیکي: څرنګـه چې ژبه د اړیکو مهمه وســیله ده، نو یې د ارتباط په ټینګولو کې هم مهم او په زړه پورې ونډه اخیســتې ده، ددې وســیلې په واسـطه ټول انسـاني تحقیقات، څېړنې او اختراعات نورو ته رسـیږي، ټولې چاپي او برقي رسـنۍ ددې په وسـیله د چوپړ په دګر کې لګیا دي، که ژبه نه وي دوی هیڅ نـه شي کولی. د ارتبـاطـاتو ماهرینو د ژبې د ارتباطي اواجتماعي ارزښــت به هکله لاندې مهم نقاط لیکلي دي.

ژبه د یوې ټولنې د چاپېریال ترجماني کوي، ځکه د اشارو، تصویرونو اعلامو له لارې انسان یو څو فیصده په یوه موضوع پوهېدلی شي، مګر ژبه کولی شي سل فیصده یالږ څه هم کټ مټ پیغام خپل هدف ته ورسوي.

دچاپېریال مکمله تشریح د معلوماتو وړاندې کول، په ټولنه کې مختلف عیبونه او اطلاعات په وضاحت سره بیانولی شي، معلومات یې نسبت، علامو، اشارو او تصویرونو ته روښانه واضح او پوهېدونکي وي، پیغام کټ مټ پرته له کوم عیبه هدف ته رسیږي. په انساني ټولنه کې ژبه د وحدت، یووالي او محبت مهمه، او د انسانانو تر منځ د افکارو او رازونو، (مافی الضمیر) او مشروع شریك کولو او لېږدولو بهترینه وسیله ده.

لنډه دا چې په انساني ژوند کې د مانا کردار د سرته رسولو لپاره ځانګړې وسله ده، چې بله هېڅ وسیله دا ځانګړتیاوې نه لري او نه ارتباط په ډګر کې دې ځان ته رسېدلی شي (7: 25، 26).

انسان د خپلې ژبې د برکت له کبله د چاپېریال له نویو حالاتو څخه خبریږي او د حالاتو د اغېز لاندې راځي. په نننی عصري او ټکنالوژیکي دور کې د ژبنیو او ارتباطي وسایلو له برکته انسان کولی شي په یو وړوکي اطاق کې د ټولې نړۍ له مختلفو، سیاسي، نظامي،اقتصادي، فرهنګي او حتی د خلکو له شخصي حالاتو څخه ځان خبر کړي. په نتیجه کې د مختلفو حالاتو د اغېز لاندې راځي او په مقابل کې یې غبرګون ښيي او خپل ما فی الضمیر د ژبې په برکت، هغه که تحریري وي یا شفاهي، ظاهروي.

## د نړیوالو اړیکو جوړښت

(Estiblishment of World Commnication)

څرنګه چې انسان د خدای ج تولنیز او بهتر مخلوق دی، نو د ژوند د ټولو چارو د ښه سر ته رسولو لپاره خدای ج داسې وسیله ورکړې چې ټولې چارې له نورو هم

نوعو کړیو سره شریکې کړي، او پـه اســانۍ سره وکولی شي خپلو لوړو اهـدافو تـه ورسیږي.
انسـانان د خپلو مشـکلاتو د حل او مشـورې لپاره، له کلي، سـیمې او هېواد څخه په لوړه کچـه یو لـه بـل سره رابطې سـاتي او په نړیواله کچه اتحاد او فیصـلې کوي. وګورئ نن د انسـانانو د ښـه صـحت د ستاتنې په خاطر د نړۍ په کچه د W.H.O سـازمان پروګرامونه جوړوي، د مختلفو ناروغیو په مقابل کې متحدانه مبارزه کوي، حتی سیاسي او اقتصادي یووالی د مختلفو ګټو د لاس ته راوړلو لپاره کیږي، چې دا ټول کارونه لفظ د ژبې په وسـیله سرته رسیږي، له ژبې پرته هېڅ امکان نه لري، چې دا ډول لوی، لوی پروګرامونه او اتحاد یې جوړې شي. (7: 25، 26).
د یادولو وړ ده، چې د ژبې په چوپړ او خدمت کې ددې ډول کارونو د سر ته رسولو لپاره ډله ییزې رسـنۍ شـپه او ورځ لګیا دي، خصـوصـاً د یووېشـتمې پېړۍ پر مخ تلونکو صـنعتي وسـایلو موضـوع نوره هم روښـانه او واضـح کړه. همدا رنګه ژبې، د انســاني ټولنې تر منځ د ورور ولۍ او یووالي، دعلم اوعرفان لاره برابره کړې او هم لوړو پوړیو ته د رسېدو مختلف وسایل لکه کمپیوتر، انټرنیټ او نور د همدې لوړې وسیلې ( ژبې ) په چوپړ کې لګیا دي.
په پښتو ژبه کې متلونه دي چې :
دتورې داغ جوړیږي خو د ژبې نه .
خپله ژبه هم کلا دی هم بلا .
ترخه خوره خو تر خه مه وایه .
غر په غره نه ورځي خو سړی به سړي ورځي.
بردي خواړه یا پور دي یا پیغور.
چې څه دې وویل همغسې به واورې .

له پورته ذکرشـویو متلونو څخه معلومیږي چې ژبه په انسـاني اړیکو او ژوند کې له لوی ارزښـت څخه برخمنه ده ، خو څومره چې سـهولت راوي ، مشـکل اسـانوي همـدومره د تخریـب ځواک او توان هم لري یعنې ژبـه د تعمیر او تخریـب دواړو اړخونو لپـاره کاریدلی شي .که چېرته ژبه د ټولنې د تخریب لپاره اسـتعمال کړو، بربادي اوتباهي منځ ته راوړي او که چېرته یې د ټولنې د تعمیر لپاره استعمال کړو؛ نو خوښـي، پرمختګ او یووالی منځ ته راوړي، مېوه یې ټولې بشریـ نړۍ ته رسیږي، چې همدغه یې انسـاني مانا هم ده او انسـان خدای ج د ښېګړې او محبت لپاره پیدا کړی، نه د نفرت او تباهۍ لپاره ځکه د انسـان د لفظ معنی ، مینه ، محبت دیو نه نفرت ، کراهت ، وژنه ، کړونه او زورونه .

**له چاپېریـال څخه اطلاع**

(Awarenees Of Enivironment)

د بشریـ نړۍ لارښـود حضرت محمد ص به په نبوي مسـجد کې د سـهار له لمانځه وروسـتـه لـه ټولو اصـحابو او ګاونډیانو څخه پوښـتنه کوله، د هر یوه حال به یې اخېسـت او هم یې ټولو ملګرو ته امر کاوه، چې د خپلو ګاونډیانو او چارچاپیر خلکو معلومات واخلي، د مسـجد یو ځانګړی برکت همدغه دی چې ټول حاضرین یو دبل له حال څخه ځان خبر کړي ، په غم او ښادي کې یو له بل سره شریک او د همکاري لپاره ورسره همغږی شي .حضرت محمدصلی الله علیه وسلم ته داثابته وه، چې له خپـل چـاپیریـال او مـاحول څخـه معلومـات او خبرېـدل ډېرې ګټې لري، چې دغـه معلومات او اطلاع له چاپیریال څخه د انسـانانو یو ځانګړی صـفت دی، چې باید یو د بـل پـه غم او درد کې شریـك شي او یو دبل په خوښــۍ څرګنده کړي او د خپل چاپیر (محیط) په اړوند مکمل معلومات ولري.(باذن ربهم الی صراط العزیز الحمید) (ابراهیم)

پیغمبر(ص) تـه اللـهج فرمـایي (الرکتـب انزالنـاه الیـك لتخرج الناس من الظلمات الی النور)

ژباړه: (ته خلك له تروږمیو څخه د رڼا خوا ته بوځه د هغه خپل رب په مرســـته هغې لارې ته چې الله خوښه کړې ده، چې ډېر مهربان او غالب ذات دی).

یوازې اللـهج او پیغمبر(ص) نـه بلکې په خپله قرآن کریم هم له تروږمیو څخه د رڼا خوا تـه بېوونکی کتاب دی (قد جاءکم من الله نور و کتاب مبین یهدی به الله من التبع رضـــوانه ســـبل الســـلم و یخرجهم من الظلمات الی النور باذنه و یهدیم الی صراط مستقیم (1: المائیده ، 15، 16).

ژباړه: دې تاسو خوا ته د الله له لوري رڼایي درغلې او یو داسې کتاب چې د هغه په واسـطه الله هغه خلکو ته چې دده د رضـا غوښـتونکي دي د سـلامتي لار ښيي او په خپله مرســته هغوی له تروږمیو راوباسي او د رڼایي خوا ته یې بیایي او د ســمې لارې خوا ته هغوی رهبري کوي. (8: 25، 26).

له دې څخه معلومیږي چې مســـلمان ژورنالیســـت د الله او پیغمبر په احکامو باید عمل وکړي خلکو ته د حالاتو ښـه تشریح او معلومات ورکړي چې حقیقت ټولنې ته څرګند شي او تول هغه مسایل چې انسان د جهالت او نا پوهۍ لوري ته بیایی مخه یی ونیول شي چې دا دیو ژورنالسـت اصلي او اساسي دنده ده که یې غفلت وکړ د خـدای پـه نزد لوی مجرم او په مســـلکي دنده کې یو غافل ګڼل کیږي. مســـلمان ژورنالیست محمدصلاح الدین په خپله وه مقاله کې لیکي:

(رڼایي په حقیقت کې د خبر دوهم نوم او د جرایمو (ناروا) په ضـــد د مبارزې مهم سنګر دی) .

نو باید مســـلمان ژورنالیســـت په دقیق ډول حقایق، اطلاعات او معلومات خلکو ته ورسوي.

په ننني عصرـــي او د تکنالوژۍ په دور کې وګورئ د معلوماتو او اطلاعاتود لاس ته راوړلو،د افکارو دماتولو او تســـخیر کولو لپاره میډیاوې شـــپه او ورځ لګیا دي په څو ثانیوکې انســـان کولی شي د نړۍ له ګوټ، ګوټ څخه ځان خبر کړي، په زړه پورې مختلف تازه معلومات خلکو ته خپاره کړي، چې د ټولنې پوره او خبري تنده یې ماته کړي.

**له مختلفوموضوعاتو څخه خبرېدل**

(Awareness of various topics)

دا صحیح خبره ده چې انسان کولی شي، د مختلفو علامو، اشارو په وسیله معلومات لاس تـه راوړي، مګر کوم معلومـات چې د ژبې په وســـیله خپرېږي، هغه ډېر بهتر، اعلی دی، په لوړه کچه او نورې وسیلې یې په مقابل کې هېڅ دي، یوازې ژبه ده چې په واسـطه یې ارتباط ښـه، د نورو وسـیلو په نسبت، واضح اوروښانه دی؛ځکه د ژبې ارتباط د الفاظو، فقرو او جملو د مجموعې په بڼه نورو انسـانانو ته رسیږي او هغوی یې بـار، بـار لولي، چې پرې پوه شي دا د ژبې یوځـانګړی او بـامـانـا کردار دی، بلـه ارتباطي وسیله دا ځانګړتیا او ښېګړې نه لري. (14: 63، 82).

یوویشتمه پېړۍ د معلوماتو ، اقتصاد ،معلوماتو او اطلاعاتو دسمند رپېړۍ ده، مختلف سـیاسي، فرهنګي، ادبي او اطلاعاتي معلومات د انسـانانو د ژوند یوه برخه ده، انسان د خپلو اهـدافو د لاس تـه راوړلو لپـاره لـه انټرنیـټ، راډیو، ورځپـاڼو، تلویزیون،کتـابونو، جریدو، جلسـو ،مجلسونو او مختلفو بحثونو څخه ګټه اخلي. کوشش کوي چې مختلف معلومات لاس ته راوړي، چې دا ټول په ژبې په وسیله ښه ترسره کیږي.

**دوه طرفه ارتباط** (Two way communication)

د ژبې پـه وســـیله په یو وخت کې له یو څخه تر میلیونونو کســـانو پورې دوه طرفه ارتبـاط ټینګېـدلی شي، انســـانـان کولی شي مخـامخ یو بل سره خبرې وکړي، پیغام قبول یـا رد کړي، چې فوراً د پیغـام منـل یاردول، یا یې ځواب ورکول او معاملات د

انساني ژوند په ورځنیو چارو کې اهم توکي دي ، د انساني نړۍ ټولې چارې پرې په ښه توګه سرته رسیږي، چې دغه سهولت هم د خدای ج دغه بهتر مخلوق ته ورکړل شوي چې د ژوند ټولې چارې په همدې بهتره وسیله (ژبه) باندې سرته رسوي، چې له انسان پرته نور مخلوقات د الله ج له دغه نعمت څخه محروم دي.

دا پیړۍ د اطلاعاتو ، اقتصـــاد او اړیکو پیړۍ ده د دې پیړۍ ژوند پر اړیکو پورې تړاو لري لـه اړیکو پرتـه ژونـد ناممکن دی ، دا چې د ژوند لپار اړیکې دومره اړینې دي نو ځکـه خو دنړۍ پوهـانو د ژونـد دلا پرمحتـګ لپاره د اړیکو د لاپیاوړي کولو لپاره داسې وسایل کوږ کړل چې نړۍ د یو ورغوي په شان سره را غونډه کړه ، ټول هغـه مشـــکلات چې د اړیکو پـه مخ کې خنـډ کوړیـدل لـه منځـه یوړل لکـه تیلیفون،مبایل او انټرنېټ چې په ورځني ژوند کې ډېر لوړ ارزښـــت لري، وګورئ د نړۍ اکثره چارې له همدې لارې سرته رسیږي.

د ژبې کـارول پـه ژوند کې یو ځان ګړی بحث دی چې باید له نرمي او میانه روي ترې کار واخېسـتل شي، ځکه په اسـلام کې د ژبې پسـت والی او نرم والی هغه څه دي چې اللـه ج خپلوټولو اســـتازیو تـه پرې امر کړی دی، چې: (په خپلو خبرو کې میانه رواوسـه) همدارنګه فرمايي: (چې نېکه خبره له خیرات او صـدقې څخه بهتره ده. (13: بقره 263)

همدارنګه فرمايي :وقل لهم قولامعروفا . وقل لهم قولابليغا.

له پورته ذکرشـویو ایاتو نو څخه معلمیږي چې انسـان باید تل صفا ، روښانه ، واضح او شـــمیرلې خبرې وکړي تر څو مقبل لوری پیغام په کره ډول درک کړي تول قرن یو بلیغ کلام دی چې هیڅ داسې بل کلام نشته دی چې مقابله یې وکړي دقران هر ایت ددې ثبوت دی .

دې موضـــوع ته پیغمبر (ص) ډېر ارزښـــت ورکړی دی ، یو ځل حضرـــت ابوهریره د حضرـت عایشې د کوټې تر څنګ په چټکۍ سره احادیث بیانول پیل کړل د حضرت

عـايشـــې(رض) پر هغـه اعتراض وکړ او ورتـه ویې ویـل: چې پیغمبر(ص) په چټکۍ سره خبرې نـه کولې، بلکې ورو، ورو غږېده که چا غوښـــتي وای چې د پیغمبر(ص) خبرې وشماري؛ نو شمارلی یې شوای.

حضرت عایشـه وایي: د پیغمبر(ص) خبرې له یوې بلې څخه جلا او روښانه وې او چا چې اورېدې پرې پوهېده.

همدارنګه ټولو ویناوالو ته د پیغمبر(ص) لارښـوونه ده چې: (کله چې د څو کســانو پر وړانـدې خبرې کوئ؛ نو یوې خوا تـه مـه ګورئ، بلکې ورو، ورو یوې او بلې خوا ته مخ اړوئ چې نورو ته د نه لیدو شك (شکایت) پیدا نه شي. (8: 112، 113).

دا چې ژبه د خدای دومره لوړه او بهتره وسـیله ده نو لازم دی چې به استعمال کې یې ډېر محتاط وو اوســو . ولې بد بختانه د دې عصرــ انســانان د خدای له عظیم نعمـت څخـه دومره بې غوره دي چې پـه داســې ډول کـاروي چې د خپـل اخرت دخرابي سـبب ګرځي ، الله د وکړي چې له دې وسـلې څخه داسـې ګټه واخلو چې موږ ته د لوی خدای د رضا او مغفرت سبب وګرځي .

### د ژبې ځانګړې علامې (Symbolism of Language

ځرنګـه چې انســان دلوی خـدای بهتر مخلوق دی نو لوی او عظیم خدای داړیکو دنیولو لپاره همداسې با ارزښته نعمت (ژبه) هم ورکړې ده د انسان په خلقت کې د الله ج ټول نعمتونه د نورو حیواناتو په نسبت لوړ او باارزښته دي، خو ژبه د الله ج هغه نعمت ده چې د ارتباط په ډګر کې نورې هېڅ وسیلې ورسره نه شي پرتله کېدای.

سره لـه دې چې پر ژبه باندې خبرې کیږي، انســان یو بل سره پوهولی او راپوهولی شي. کله، کله داسې هم پېښـېږي، چې انسـان د خپل راز د حاصلولو او هدف ته د رســېدلو لپاره له ځانګړو ژبنیو اوازونو (علامو) څخه ګټه واخلي، چې خپل ځانګړی پیغام، ځانګړو وګړو ته وښــيي او د پیغام له رســېدو سره د خپل ځانګړي هدف په لورګام واخلي.

دا ډول غرېزې علامې (شپېلك، چش) او د حيواناتو نور مختلف النوع اوازونه دي چې د نړۍ د هېوادونو فوځيـان، نظـامي كار كوونكي يې په جنگي حالاتو او يا نورو اهدافو د لاس ته راوړلو لپاره استعما لوي .

**په پراخه پيمانه اړيكې** (Communication at large level).

د خـدای ج په دې پراخه نړۍ کې انســانان کولی شي چې د علامو او اشــارو په وسـيله ارتباط سره ټينگ کړي، مگر اغېز او پوښښ کچه يې کمه ده، هېڅ امکان نه لري چې د ژبې ځای ونيسي. يوازې ژبه ده چې اړيکو په ډگر کې يې د ارتباط کچه ډيره پراخه، لوړه او بهتره ده، چې هېڅ يوه بله وسيله دا مقام نه شي ترلاسه کولی.

سـيف الرحمن (2009) په دې هکله ليکي: د عادي ژوند له ورځني ارتباط سره سره د ورځې تقريباً څه د پاســه 14 اربه (څوارلس زره ميلونه) انســانان د ورځپاڼو پاڼې اړوي را اړوي او د نړۍ د نفوس درې برخې راديو، تلويزيون او د نورو سنيو له لارې دژبې په وسيله اړيکې ټينگوي.

که ووايو چې د انســاني نړۍ د ژوند چارې (95) فيصــده د ژبې په وســيله حل او فصل کيږي مبالغه به نه وي. (6: 26، 30).

(2): **اشارې** (Gesture):

د اړيکو له مهمې وسيلې (ژبې) څخه وروسته د ارتباط دوهمه او مهمه وسيله اشارې (علامې ،نښې) دي چې انسانان خپل نظريات، افکار، عقايد، اطلاعات ،معلومات او تجربې د همدې وســيلې په واســطه ،له يو څخه بل ته پرې انتقالولی او لېږلی شي. (16: 28، 29).

که يواځې ژبه د پيغام د لېږلو وســيله وبولو، نو گونگيان، کاڼه او نور معذور کســان بـه د اړيکو لـه نعمـت څخه محروم پاتې شي. که ړوند د ژبې له اواز گټه اخلي، نو کاڼه او گونگيان د لاس، سر، ســترگو او بدن د نوور غړو له اشــارو څخه اســتفاده کوي. د ااړيکو عالمانو اشارې او علامې په لاندې برخو وېشلې دي.

(1) : جسماني (دبدن د غړو) اشارې.

(۲) : خاکې او لاینونه او نښې.

(۳) : د رنگونو اشارې.

(۴) : د مخصـــوصو اوازونـــو اشارې.

**(1) د بدن د غړو (جسماني) اشارې:**

د بدن له هغو اشارو څخه عبارت دی چې له الفاظو پرته د انسان د بدن د نورو غړو په وسیله سرته رسیږي، لکه د سترگو وهل، د غاړې، لاسونو، گوتو، پښو، سر او یا د نورو غړو ښورول، چې ښې نمونې یې په نظامي درسونو، د لوبو په میدان، همدا رنگه په مکتبونو، ســپورت کلپونو او د جنگ په حالاتو کې مختلفو بدني اشــارو او علامو څخه دي، چې نظامي مشرـــانو لوبغاړو او مســـولینو له خوا دمختلفو غوښـــتنو او ضرورتونو د پوره کولو لپاره ... اجرا کیږي.

**(2) خاکې او لاینونه رسم شوې علامې:**

هـغـه ځـانـگړې علامې دي، چې خـاص مفهوم لري او د ځـانگړو اهـدافو لپـاره استعمالیږي. محمد یوسف (2006) په دې هکله لیکي چې:

مختلفې ترافیکي اشارې، خطونه د روغتونونو، سره صلیب، سرې میاشتې، او داسې نورې علامې چې خـاص مفهوم لري دهمـدغو ځانگړو موخو لپاره کارول کیږي . که د تیلو پمپ ته نږدې ورشئ؛ نو د سگرټ په تصویر یې (x) علامه کش کړې وي مانا یې دا ده چې ســگرټ مـه څکوئ، یـا یې همـدارنگـه زېورات، لوړې، لوړې مـانۍ ، تـاریخي ځـایونـه ، نښـــې هم ځانگړی مفهوم افاده کو ي. د تېلو په ټینکر یې د اور علامه (رسـم کړې وي) چې مانا یې دا ده چې خطره ده. همدا رنگه د سـړك په غاړه او منځ کې ســپین ژېړ خطونه اوعلامې ، په ځانگړو نظامي ځایونوکې ځانگړې نښــې چې دیو خـاص مفهوم لپاره لیکل او خپریږي مختلفې معناوې ورکوي، دې ته ورته علامې چې پـه مختلفو لویو، لویو، تختو بـاندې په چوکونو، پارکونو او لویو بازارونو ،

دیوالونو ، پلونو او لـه نفوســو ډکو ســیمو کې لګول شــوې وي ځانګړي پیغامونه انتقالوي.

**(3) د رنګونو اشارې او نښې :**

پـه انســاني نړۍ کې اړیکې د مختلفو رنګونو په وســیله هم ټینګیږي، زه چې کله نړیوالې لوبې ګورم ډیرى وخـت لوبغـاړي او کتونکي پـه بیرغونو پیژنم چې د نړۍ په کچه د مختلفو لوبغاړو پیزندنه هم د بیرغ د رنګ له مخې کیږي . همدارنګه د نړۍ په کچه رنګړنه مختلفې ماناوې لري لکه شین او سپین رنګونه د سولې په مانا دي ، مختلفو بیرغونو، جامو دریشـیو کې شـین، تور رنګونه مختلف پیغامونه لري. همدا رنګه تور بیرغونه، د غم اندېښـــنې او خفګان علامه ده، چې په نړۍ کې خلك ورڅخه ګټه اخلي. د ترافیکي اصــولو ژېړ، ســور، شـــنه رنګونه په نړۍ کې څومره مشـهور دي، د نړۍ ټول ترافیکي قوانین د همدې اشـارو په رڼا کې سفرونه کوي. پـه هوایي میدانونو کې د الوتکو د پروازونو لپاره مختلف رنګونه او بیرغونه ځانګړی مفهوم لري.

همدارنګه د مختلفو نظامي،سـیاسي اشـخاصـو د جامو رنګونه، لکه پولیس،اردو،اور وژونکي، ښاروالۍ... او نور مختلف ځانګړي مفهومونه افاده کوي.

**(4 ) د ځانګړو اوازونو اشارې:**

پـه انســاني ژونـد کې سره له دې چې انســـان ته انســـان په ژبه مفهوم او پیغام لیږدوي، مګر بیـا هم کله کله داســې بې مفهومه ځانګړي اوازونه له انســـان څخه صـادریږي چې د ځانګړو موخو لپاره ترې کار اخلي، چې خاص او ځانګړی مفهوم او مجازي مانا افاده کوي او په ځانګړو ځایونو کې د خاصــو اهدافو لپاره ډیر مؤثر ثابتیږي (ها- ها ـــهی ـــهی ،ویش ، ها ها ، ای ، ای ) د خوشحالۍ او کله د خفګان مانا ورکوي، کله چې انسان په سخت مشکل کې وي اه، اخ، ویش ـاف...نور اوازونه

باسي، دا ډول بې مانا اوازونه په انسـاني نړۍ کې مختلف پیغامونه په ډېره اسـانۍ سره انتقالوي زموږ اوستاسو په ټولنو کې یې په زرګونو مثالونه پیداکیږي .

(۳) **څېره (بڼه)** Facial Expression:

د الله ج په 99 نومونو کې یو نوم المصورج دی (شکل ورکونکی) نو خدای ج هېڅکله هم دوه انسانان په یو ډول نه دي پیدا کړي، ضرور یو له بل سره توپیر لري، د انسان شـــکل د هغه د باطن او ضـــمیر عکاسي کوي او په مختلفو وختونو کې یې څېره له بهرنیو حالاتو سره تغیر مومي، په دې مانا که انسان په زړه کې خوښ وي، نو خوښي یې لـه څېرې څخـه معلومیږي، کـه چېرې له غم او کړاو سره مخامخ وي؛ نوخفګان یې له شـکل (څېرې) څخه معلومیږي او څوك چې ورته ګوري معلومات ورته کیږي، چې له څه مشکل سره مخامخ دی.

د ټنډې د تروشـیدو (کونجیدو) په اړه خدای په قران کې هم رسـول کریم حضرـت محمد ص باندې یو ځانګړ سـورت نازل کړی چې د حضرـت عبد الله ابن ام مکتوم په اړه دی ، د نوموړي سـترکې نه وې معذور وو په اړه رسـول ته امر شـوی دی . عبس وتولی ان جاه الاعمی ...

که په ورځني ژوند کې د تلویزیون خبرونو ته غوږ ونیســـو؛ نو کولی شـــو د مختلفو کســـانو لـه څېرو څخه دهغوی حالات معلوم کړو. د اواز او څېرو تر منځ یې توافق پیـدا کړو، که چېرې کوم انســـان چې له حج نه راغلی وي، نوی واده یې کړی وي. ورك ورور یا دوســـت یې له ډېر وخت وروســـته پیدا شي ، د هغه خوښـــي د هغه له څېرې څخه ښه احساسولی شو او که چېرته له کوم غم، درد او مشکل سره مخ وي، د هغـه لـه مشـــکـل څخـه پوهیږو چې لـه څومره لوی خفګان سره مخامخ دی، لکه سیاسي، بندیان، مریضان غم ځپلي خلك او داسې نور لنډه دا چې د انسان د باطني ضمیر عکاسي د هغه له څېرې څخه کېدلی شي.

د پاکستان لومړنۍ ښځینه وزیر عظمه بینظیر بټو چې کله لومړی ځل صدر عظمه شوه ، له وزیرعظمي وروسته یې د امریکا هیواد ته سفر درلود چې د جورجبوش پلار هلته جمهور ریس وو ، دواړو د بندو دروازو شــاته څوســاعته ملاقات درلود ، کله بیظیر بټو را ووتـه نو ژورنـالســـتـان ورتـه د مرکې لپاره منتظر وو ، بینظیر مرکې ته حـاضره نه شـــوه ، د بي بي سي ژورنالســـت دهغې له حرکاتو ، رنګ او څیرې څخه داسـې تجسـمي مرکه جوړه کړې وه :( د پاکستان لومړنۍ صدرعظمه بینظیر بټو ، دامریکا له جمهور ریس بوش سره د بندو دروازو شاته له څو ساعته ملاقات وروسته ژونالستانوته مرکې ته حاضره نه شوه په داسې حال کې چې دمخ ویښتان یې ګډوډ او رنګ یې تښتیدلی وو ).

کله کله انســانان مختلف خواږه، نرم او ســپېڅلي کلمات استعمالوي، مګر هغه د څېرې خلاف وي ځکـه له څېرو څخه یې معلومیږي، چې دوی داخبرې د زړه له تله نه کوي،بلکې د خپل باطن برعکس لګیا دي، نو ویلی شو، چې وواېو د انسان شکل په اړیکو کې مهم کردار ادا کولی شي .

د یویشـتمې پیړۍ ډیری سـیاسیون یې ښه مثالونه دي لکه دپاکستان حکومتي فوځي چارواکي چې دافغانستان په اړه په نړیوالو غونډو کې ظاهرا یو څه وایي او په باطن کې هغه څه کي چې په هیڅ انســاني چوکاټ کې نه راځي ، همدارنګه د امریکا یي چارواکو اوســـنی ســیاســت چې کړنې او اقوال یې یو له بل سر مخالف دي ، دنړۍ هر ډول نظامي او جنګي وسایل له ځان سره لري خو په افغانستان کې یې امن را نه وست . زموږ په هیواد کې دتیرو څو لسـیزو کورنۍ جګړې د دوی نوښـت او ابتکار دی ، نن ورځ عمران خان هم چې د همدې ســیاســت او ســطرنج بله شــړه ده نارې وهي چې د افغـانســـتـان امن زموږ او نړۍ امن دی وبه ګورو چې د ده وعدې له ژبې او څیرې سره بو پیر لري او که رښتینې دي .

ماته په سترګو کې حال وایه      لارې کوڅې له غمازانو ډکې دینه .

### (4) تحریر (لیکنه):

تحریر د اړیکو یوه مهمه وسیله ده، چې کټ مټ پیغام خپل هدف، (اخېستونکي) ته رسوي. هغه ټولنې چې د لوست (سواد) سلنه (فیصدي) یې زیاته وي، له مطبوعاتو څخه زیاته ګټه پورته کوي. ځکه چې د لیکونکي یا خپرونیز ارګان نظریات، معلومات، افکار،تجربې او عقاید پرته له کوم تغییر اوبدلون څخه خپلو مدنظر خلکو ته رسوي، چې همدغه بدلون او تحریف د تحریر یو ځانګړی صفت دی، چې نورې وسیلې پورته صفت نه لري. ځکه امکان لري د ژبې، اشارو اوعلامو ارتباط کې انسان ته هغه مفهوم چې د پیغام لېږونکی هدف دی غلط انتقال شي. په هغه ډول چې د پیغام لېږونکی هدف دی، پیغام ونه رسېږي او په تحریر کې دا نقصان نشته څه یوځل ولیکل شول بیا نه بدلیږي.

همدا رنګه مطبوعات، د باسواده، د علمي ټولنې د ذهن خوراك، د نړۍ د باسواده ټولنې لپاره په مختلفو مسایلو کې لارښود ، او دارګان لپاره اقتصادي تکیه ګڼل کیږي . د ورځې څه د پاسه 4 اربه (څلور زره مېلونو) څخه زیات خلك د ورځپاڼو مخونه ګوري د خپل شوق او ذوق مطابق معلومات ترې اخلي. مختلف سیاسي، اجتماعي، فرهنګي، اقتصادي معلومات. له مقالو، سرمقالو، ستونونو او فیچرونو څخه لاس ته راوړي. سره له دې چې تحریر د انسانانو ذهني خوراك برابروي، په مختلفو حالاتو کې عامه رايي تر اغیز او چتر لاندې راولي ، خلکو ته لارښوونې کوي څو دمختلفو حالاتو په مقابل کې ټولنې ته سالمه لار ښوونه وکړي ، له دې سره سره لاندې مهمې ځانګړتیاوې هم لري.

(1) د ضرورت په وخت کې د ثبوت په ډول وړاندې کېدلی شي.

(2) پالیسي یې د کتونکو له پېژندنې څخه وروسته پلي کیږي.

(3) په فرصت سره څه وخت دې چې زړه وغواړي لوستلی یې شې.

(4) ســتون، فیچر، سرمقـالې او نورې لیکنې چې د مطبوعـاتو ځـانګړې برخه ده، د حکومت په تګ لارو تبصرــې او ګوټ نیونې کیږي او بیا په پراخه توګه خپریږي او په دې پیړۍ کې د چاپي رســنیو اقتصــادي تکیه هم جوړي او همدارنګه یې د یو ویشــتې پیړۍ د معلوماتي او تکنالوژیکي ســیلاب هغه ټکی له ګواښ سره مخ کړ چې یې ځینو یې وړاندوینه کړې وه چې په دې عصر- کې چاپي رسنۍ له منځه ځي بلکه لایې مینوال زیات شــول او هغوی له فیچرونو کالمونو او ویب ســایټونو څخه ګټه پورته کړه .

5: همـدارنګـه په مطبوعاتو کې د جرم او ســزا مختلف خبرونه خپریږي، چې خلك ورڅخه عبرت واخلي، لنډه دا چې مطبوعات په هغو ټولنو کې چې علمي ســویه او ســلنه یې لوړه وي، بې کچې اغېز لري. او له سره په نړۍ کې هر هغه انســان چې لیـک لوســت کوي ، لولي یې او دفتر تـه ځي مجبور دي چې لـه تحریر سره اړیکې ولري ، نو څه فکر کوی دهغوی شمیر به څومره وي ؟!

موږ په ورځني ژوند کې د مختلفو اهدافو لپاره الفاظ او کلمات له خولې وباســو. د اشارو او علامو په وسیله ځان هدف ته رسوو، ګرمه اوسړه هوا احساسه وو، ښه او بد بوي احساس کوو، دا ټول د اړیکو نمونې دي دا ارتباطي عمل به تر هغه جاري وي، چې انســانان د ځمکې په سر ژوندي وي، لنډه دا چې ااړیکې د انســان د ژوند په مختلفو برخو کې مهم او په زړه پورې رول ادا کوي. ددې لپاره چې موضـوع ته ښه داخل شو. د اړیکې ډولونو تر مطالعې او څېړنې لاندې نیسو.

## د اړیکو (ارتباط) ډولونه

د ارتباطاتو عالمان ارتباط په لاندې برخو ویشي: (Types of Communication)

(1) د انسان له ځان سره اړکې Intra Personal Communication

(2) د انسان له انسان سره اړیکې Inter Personal Communication.

(3) له غير زيروح (مړو) شيانو سره اړيکې Extra Personal Communication.

(4) ډله ييز اړيکې Mass Communication.

**۱: د انسان له ځان سره اړيکې** Intra Personal Communication

دې ډول ارتبـاط تـه ځـاني، خودي ارتبـاط هم وايي، دې ډول اړيکو کې انســـان پـه شـعوري او غير شـعوري توګه شـامل وي، انسان له خپل ځان سره اړيکه نيسي، لکه فکر او سوچ کول، تصميم نيول يو کار ته اراده کول، همدا رنګه راډيو، ټيپ، سندرو اورېدل، د ښــه او بد پېژندل، راډيو او تلويزيون د چېنل (موج) تبديلول له ځان سره خبرې کول، د خوشحالۍ او غم محسوسول او داسې نور اعمال ټول په (ځاني، ذاتي) ارتباط کې شامليږي دهمدې ډول اړيکو برخه ده او همدغه اړيکې د نورو ټولو اړيکو سرچينه او بنسټ دی که دې ځای (دماغ) کې اړيکې ګډې وډې شوې نو بيا تر پايه بې ګټې او بې موخې نو دا ډول اړيکې دنورو اړيکو لپاره اساس او بنسټ کڼل کيږي

## د ځاني ارتباط ډولونه:

ځاني (ذاتي) ارتباط سيف الرحمن (2009) په لاندې ډولونو وېشلي دی.

**(۱)د ژبې په وسيله له ځان سره ارتباط:**

يوازې سـوچ او فکر، خبرې کول، په لوړ اواز د درس زده کړه له ځان سره لوړ او ژور فکرونه.: ژړل، خندا، خوښي، بوڼېدل او نور په دې ډور ارتباط کې شامليږي ، د دې نړۍ انسان دمختلفو کړاوونو او چلينجونو له امله له مختلفو اړخونو کړيږي او بيا د اقتصـادي ،سياسي، او کلتوري دردونو له امله خپل په يو نه يو ډول مشغولوي ، که څوک ورسره نه وي له ځان سره مختلف اوازونه زمزمه کوي او خپل غم او ښــادي لمانځي.

**(2) له ځان سره بې غږه ارتباط** (Communication without sound)

دا ډول ارتباط هم په دوه ډوله دی ذهني ارتباط، جسماني ارتباط.

**الف: ذهني اړیکې:** په دې ډول ارتباط کې له ځان سره خیال، فکر، سوچ کول، پـه مجلس کې نورو خلکو تـه کتـل او داســې نور شــامـل دي، یا په بل عبارت په جسماني ډول په یو مجلس او په ذهني ډول بل چېرته وي. شاعر څه ښه وایي:

په اندېښنو مې ځان پاچا کړ سر مې راپورته کړ ملنګ د دنیا ومه

کله کله ځینې انسـانان چې له کوم لوري ځوریدلی وي یا له څه مشکل سره مخ وي پـه مجلس کې ذاتا دلته او روحا بل چیرې وي ځکه چې دی په هغه څه مصرــوف وي چې ترې کړیږي .ډیری هغه خلک چې ذهني او عقلي مشکل ولري له دې ډول کسانو حسابیږي .

**ب:** جسماني (بدني) اړیکې (Body Communication):

د بـدن د مختلفو غړو په وســیله له ځان سره ارتباط نیول هم له مهمو ډولونو څخه حســابیږي، اکثره وخت د بدن په مختلفو غړو ارتباط نیول کیږي، لکه (په برېتونو ګوتې وهل، د بدن د کوم غړي حرکت، د ګوتو ټکول، د پنډیو را نغښــتل، تانګونه اېســتـل ، دژبې ځینې غږونـه او داســې نور بـدني حرکتونه پرته له کوم اواز سرته رســیږي، چې هر یو خـاص مفهوم لري مثلاً کـه چـاتـه پـه برېتو ګوعې وهي، نو د قهرمـانۍ زور او قوت مـانـا ورکوي، کـه چاته ګوتې وپړکوې (وټکوې) د رشــخند یا خوښــۍ مانا ورکوي او که چاته مټې راونغاړې او تانګو وباســې، نو د حملې،برید او ګواښ مانا ورکوي، دې ته ورته داسـې نور حرکتونه پرته له اواز سرته رسـیږي، چې ځانګړی مفهوم، مانا او په ارتباط کې ځانګړی ارزښت لري. (16: 33، 37).

**ج :له ځان سره د بې مانا اوازونو په وسیله اړیکې:**

کلـه، کلـه انســان بې مانا او بې مفهومه اوازونه کوي، چې ظاهراً هېڅ مانا نه لري، مګر دی په خپله (اواز وېستونکی انسان) له ځان سره ارتباط نیسي. لکه اف، اخ، ها، هو. لـه ځـان سره بوګنېـدل، د ځـان پـه کومـه برخـه زور کول ، هههـه، ســـس، فوفففففف، او دې ورته نور عملونه په دې ډول ارتباط کې شمېرل کیږي.

اکثره هغـه خلـك چې پـه ژونـد کې ســختې لوړې او ژورې پرې تېرې شـــوې وي، ځورېدلي او کړېدلي وي او یا هم له روحي فشار لاندې وي، له ځان سره په دې ډول ارتباط کې شـامليږي په ځانګړي ډول سیاسي بندیان چې زیات کړاوېپ لیدلی وي ، همدارنګه هغه جاسـوسان چې دلینیو په جامه کې دنده ترسره کوي ، ملنګان چې د یوې ځانګړې اداري له خوا د ځاګړیو موخولپاره ګومارل شوی وي له دې ډول کړنو کار اخلي څو عادي خلک پرې پوهه نه شي .

**(3) له ځان سره د تحریر (لیکنې) په وسیله ارتباط**

(Written Communication)

د نن ورځې په دې پر مخ تلونکي عصـري تکنالوژیکي نړۍ کې میلونونه ، انسانان له انټرنیټ، راډیو، تلویزیون او کتاب پرته خاص، ورځپاڼو پاڼې ګوري، د خپلې خوښــې خبرونه، معلومات او اطلاعات راټولوي، هغه انســانان چې کتابونه لولي، په انټرنیټ کې د کمپیوټر د ســکرین پـه ذریعـه مختلف تحریري معلومـات او تصـــویرونه، د اسـتادانو لکچر، نوټونه، د مکتب او مدرسـو د زده کوونکو درسي کتابونه. ګوري، د هغوی شمېر او تعداد به څومره وي؟ په اوسني وخت کې یوازې دفسبوک لیدونکي په نړۍ کې له ۲,۲۳ بیلونو څخه زیات دي ، یوازې په پاکســتانکې ۳۰ کروړه او ۳۰۰ لکه خلک فسبوک کاروي ، په هندوستان کې د ټولې نړۍ په نسبت زات کاروونکي لري چې ۲۷۰ میلونوته رســیږي ، په اندونیزیا کې ۱۴۰ میلونو ته رســیږي ،د اخو د دې وخت عصري وسیله ده ، خو په نړۍ کې د جریدو، کتابونو، مجلو خپرول هم په ډله ییز ارتباط کې راځي. خو کله چې انسـان له خپل ځان سره لیکنه کوي، مضمون لیکي یـا نور څـه ورځني معلومـا لیکي، په ځاني تحریري ارتباط کې شـــامليږي، لکه شـاعران چې شـعر د کاغذ په مخ لیکي، عالم خپل یو علمي، اقتصـادي، فرهنګي یا ادبي مضـــمون د کـاغذ په مخ لیکي، د ســـاینس پوهانو تجربې...په ځاني تحریري ارتباط کې شـامليږي، چې دا هم د انسان له ځان سره ارتباط کې یو مهم ارتباط دی

او په ژوند کې لوی ارزښت لري زموږ او ستاسو ځاني مطالعه هم د همدې اړیکو یوه برخه ده .

**(2) دوه طرفه (بین الجاییین) ارتباط:** (Inter Personal Communication)

پـه دې ډول ارتبـاط کې دوه او یـا لـه دوو څخـه زیات کســـان یو بل ته خپل افکار، نظریـات،اطلاعـات او معلومـات تبـادلـه کو، چې عمومـاً د وینا، لیکنې، تیلیفون له لارې سرته رسیږي، چې ښه مثالونه یې په ورځني عادي ژوند کې د انسانانو تر منځ مختلف تالنوع اړیکې دي چې ارزښـــت یې ډېر لوړ دی، ځکه دغو ورځنیو تعلقاتو کې له برکته انسـان له نورو حیواناتو څخه لوړ دی، حیوانات د خپل ژوند د امورو د تنظیم لپاره هېڅ نه شي کولی، خو انسان خپل څه چې د نورو کایناتو دسهولت او له هغو څخه د ګټې اخېستلو لپاره مختلف پروګرامونه جوړوي، اوسنی انسان د ځمکې په سر ننګ شو، دادی اوس یې د فضا لوري ته مخه کړې، هلته تحقیقات او څېړنې کوي، چې په راتلونکي وخت کې یې څنګه او څه ډول استعمال کړي،ددې لپاره چې ژوند یې هلته نورمال وي باید څه لارې چارې ولټوي.

(14، 8، 9).

لنډه دا چې دو طرفه ارتباط په ژوند کې ډېر لوړ ارزښـت لري او د دوه طرفه ارتباط پـه وخـت کې د غلطیو او د پیغام د صـــحیح مفهوم د نه پوهیدو له کبله مختلف جنګونـه او د ژونـد کړاوونـه منځ تـه راځي. کـه چېرتـه دو طرفـه ارتباط ختم شي د انســان د پرمختګ او ترق کارونه په ټپه دریږي، ځکه مختلف علوم، تجربې، افکار، نظریات او معلومات په انساني سینو کې

دفن کیږي او ګټه یې نورو انسـانانو ته رسـیږي. کله چې د یو انسان ګټه بل ته ونه رسـېده، نو د انسـان انسـانیت هېڅ دی، حال دا چې پیغمبرصـلی الله علیه وسـلم فرمایي: (بهتر د خلکو هغه څوك دی، چې خلکو ته یې ګټه ورسیښږي) او همدا رنګه د کایناتو خالق الله ج هم محمدي امت ته فرمایي چې (تاسـو بهتر د امتونو یاسـتئ

راایستل شوي يې له خلکو څخه چې په نېکو امر وکړئ او له بدیو څخه خلك منع کړئ) چې دا کار په دو طرف ارتباط سره ترسره کيږي، نو مسلمان ته لا زمه ده چې همېش له خپل کور، گاونډيانو، دوستانو، ملگرو....سره په ښه توگه حسن روابط ټينگ او له گوښه نشيني څخه ځان وساتي.

له انسان پرته له نورو موجوداتو سره اړيکې (Communication with Lifeless Things)

که انسان خپلو ورځنيو اړيکو ته ځير شي، نو دې ځای ته رسيږي، چې انسان له انسان پرته له نورو موجوداتو سره هم روابط لري او هېڅ امکان هم نه لري، چې ځان ترې گوښه کړي، چې دغه روابط عبارت دي له:

له حيواناتو سره ارتباط، نباتاتو سره ارتباط، له مړو (غير زيروح) شيانو سره ارتباط.

**له حيواناتو سره ارتباط** (Communication with Animals)

انسان په خپل ژوند کې له بېلا بېلو حيواناتو سره اړيکې لري، لکه څاروي، مرغان، درنده گان (ځيرونکي) او داسې نور. مثلاً هغه کورني حيوانات چې اهلي دي، انسانان ورسره د يو خاص اواز په وسيله اړيکې ساتي، لکه څاروي، کوترې، طوطي، پسونه او داسې نور کړرني حيوانات اومرغان چې انسانان يې د ژوند د مختلفو ضرورتونو لپاره په کړرونوکې ساتي . په يو ځانگړي اواز يې ځان ته رابولي او همدا رنگه دغه حيوانات چې کله له مشکل سره مخامخ شي، څه ته يې ضرورت پيدا شي، هم خپل څښتن په يو ځانگړي اواز خبروي، کله په کور کې د غوا د لوشلو وخت شي، رمباړې وهي، مېرمن پوهيږي، چې د غوا د لوشلو وخت دی چې کله څاروی وږی شي، خپل څښتن په يوه ځانگړي اواز پوهوي ، بغيږي څو څښتن خبر شي چې دوی ضرورت لري. دا ډول اړيکې د انسان د ژوند په ډگر کې ځانگړی ارزښت لري. (16: 34، 35).

**له نباتاتو سره اړیکې** (Communication with plants)

انسان د خدای ج یو ټولنیز مخلوق دی، تل په دې دا خوښ وي چې د خپل ژوند د خوښـې لپاره په محیط کې فزیکي تغیرات راولي، اکثره وخت انسـان د خپل ځان د خوښــې لپاره کورجوړوي ، ښـکلی کوي او رنګوي یې ، په کور او له کوره دباندې پټیو کې مختلف ګلان، بوټي، ونې کري او د مصرـــوفیـت پـه وخت کې له مختلفو بوټو سره خبرې، محبـت اوســاتېری کوي او کلـه چې قـدم پکې وهي ورته غږیږي، ســندرې وایي، شــپېلۍ غږوي، د بلبلانو او مرغانو له اوازونو خوند اخلي ،کله کله شـاعران په ګلانو کې ناست وي شعر لیکي، خپل محبوب له ګل سره د شعر په ژبه شریکوي، خپـل راز و نیاز د خپل محبوب په ځای ګل ته وایي چې ټول هغه څه دي چې انسان د خپل ژوند له چاپیریال سره په خبرو او سندرو راولي.

**نمونې یې دا دي:**

دبهار ګـــــــــلونه ټول ترینه شرمیږي     په خندا کې چې موسکی شي یار زما

بلبلان به ګلان پریږدي چې خبر شي     چې له ګلو ښایسته مخونه هم شــــته

**له مړو (غیر حیه) شیانو سره اړیکې**

(Communication with lifeless things)

لـه حیوانـاتو، نبـاتاتو او ګلانو پرته انســان په خپل ژوند کې ډیری وخت له لرغونو ،مړو (غیر زیروح) شـیانو سره هم ارتباط سـاتي. لکه تېرې، غرونه یا د ګاري تاریخي څلي او مـانۍ ، ځایونه ، هدیرې ، مزارونه ، زیارتونه ، ســیمې ، کلي او داســې نور انسـان چې کله کومې تاریخي مانۍ ، ځای ، سـیمې ، هدیرې ، یا څلي ته ورشي، نو پـه ذهن کې دهغه ځای د هغه وخت د خلکو په اړوند مختلف فکرونه پیدا کیږي، د وخت له قهرمانان، مشرانو او مشهورو خلکو سره مینه ښیي.

مثلاً که کوم افغان چې د میوند هدیره یې نه وي لیدلي هلته لاړ شي، نو سـمدستي د غازي او ننګیالۍ ملالۍ تاریخ ورته یادیږي او ّڅه کوي چې قبر ته یې ودریږي.

غـازي محمـد ایوب خـان ورتـه یـادیږي او پـه ذهن کې غازي امان الله خان. غازي محمـدجـان، وزیر محمـداکبرخـان او د هېواد د تـاریخي نور مېړني، تاریخي څېرې ورتـه راڅرخېږي ، ذهن کې یې پـه دې هکله مختلف تصــورات رازیږیږي، له دوی سره مینـه ښــیي کـه پـه نوي ډیلي کې د اکبر بـا چـا ځـای ( تاج محل ) ته ورشــې ســمدســتي دهغه وخت د کارکونکو مهارتونه ، د پاچا مینه له خپلې میرمنې او د تاریخ پاڼې دسـړی سـتر ګوته دریږي . که شـاعر وي سـمدسـتي یې په هکله شـعر لیکي، چې د انسـان دې ډول تصـوراتو او فکرونو ته له مړو (غیر زیروح) شـیانو سره ارتباط او یا جماداتو سره ارتباط ویلی شوږ.

دغه ډول ارتباط د بعضـې انسـانانو په ژوند کې ځانګړی ارزښـت لري او کله کله د ځینو انســانانو په ژوند کې مهم رول لوبوي، تاریخي او یادګاري تصــویرونه ورسره اخلي او د انســـان په راتونکي ژوند کې لوی کردار اداکولی شي. د هېواد د تاریخي وګړو له ژوند، اعمالو، سرښــندنو، بریاوو او کړاوونو څخه خبریږي. ددغې دورې په هکلـه مختلفو معلومـاتو تـه مراجعـه کوي غواړي چې پـه اړه یې ډېر معلومـات راپیداکړي .

لنډه دا چې انسان ډېرو نورو باریکو نقاطو ته متوجه کیږي، کېدای شي د انسان په راتلونکي ژوند کې ژور بدلون راولي.

د اړیکو ځینو عـالمانو بیا داړیکو لاندې ډولونه په ګوته کړي دي چې په پورته ډول ما لنډ او منظم لیکلي دي چې داړیکو ټول ډولونه پکې شــامل دي خو بیا هم ددې لپاره چې سـتاسـو معلومات زیات شي د ځینو علماوو له قولونو نو هم خبر شی ما دهغوی نظریات را غورچاڼ کړي تاسوته یې لنډ لیکم :

**دوی په بنسټیزډول اړیکی په لاندی شپږوډولونوویشلې دي :**

۱-داخلي خپل منځي اړیکې چې ما د(ځاني اړیکې ) په نوم لیکلې دي

۲-خپل منځي اړیکې چې ما دوه طرفه اړیکې لیکلې دي

۳-دډلې یاګروف اړیکې

۴-اضافي خپل منځي اړیکې

۵-ټولنیزې اړیکې

٦-رسنیزې اړیکې.

غواړم هر یو درته لنډ لنډ د دوی له نظره تشریح کړم ، دا برخې مخکې تشریح شوې فقط کوم ځای کې توپیر لري .

**الف- داخلي خپل منځي اړیکې (ځاني اړیکې):**

داهغه اړیکې دي چې په خپله دشخص له خوا په قصدي یاغیرې قصدي ډول په غړیز،شفاهي یاغیرې شفاهي بڼورامنځ ته کیږي .

ټول انسانان داخلي خپل منځي اړیکو (ځاني اړیکو)سره تړاولري ځکه داد اړیکوبنسټیزه برخه جوړوي چې د اړیکې نورډولونه اوبڼې تري راوځي .

هغه تن چې دهغه داخلي خپلمنځي اړیکې (ځاني اړیکې )غښتلې اوګټورې وي دهغه نورې اړیکي هم پراخې اوغښتلي وي، په دغه ډول اړیکوکې داړیکې ټول اړین توکي شتون لري.

دبېلګې په ډول :که یوتن له خپل ځان سره خبرې کوي یا له ځان سره فکر کوي اویاهم یوشی خپل ذهن ته راولي ،نوپه دغو ټولو مواردو کې دهغه غوږونه اوسترګې د یوه لیږدونکي دنده پرمخ وړي چې پیغام دمیډیم یامنځګړي له لارې لیږدوي .

دغه منځګړی دهغه اعصابومرکزي سیستم دي چې ا ړوند پیغام دناڅاپي انګېزې په بڼه وي اوورسته دغه پیغام ترلاسه کوونکي ته راځي چې، هغه انساني مغزدی. بیا معزهم غبرګون ښکاره کوي، چې دا ډول اړیکه په خپل ذات کې یوپوره ماډل اونمونه ده.

دپورتني بحث په پایله کې لاندې توکي اواصطلاحات بایدتوضیح شي .

**شفاهي :(verbal)**

دا له هغه کلماتوڅخه جوړ یا ورسره تړاولري چې خبرې پرې کیږی ،دبیلګې په ډول که چېرې یوتن دشعر،ډرامې یاکومې لوبې الفاظ ،جمله اوکرښې په ذهن کې یاداښت کړي اوله ځانه سره یي ولولي ،دغه ډول اړیکې ته شفاهي یا( Verbal)اړیکه وایي.

**غیرې شفاهي: (Non-verbal)**

کله چې یوتن کې دیوه شی په اړه ځانګړې ډار اواندېښنه راپیداشي ،دغه ډول اړیکو ته شفاهي اړیکې وایي.

**غرېز :(verbal)**

داډول اړیکې له بهرني بیولوژیکي غوړیدنې اوچاودنې عبارت دی چې په بې اختیاره ،فوري اوقصدي ترکیب سره یوځای رامنځ ته کیږي اوموخه یی ترډیره تشدد اوخطرڅخه دځان ژغورنې لپاره د مرستې راجلبول دي.

**ب.خپل منځي اړیکې:(Intra Personal Communication)** داهغه اړیکې دي چې دوه یاله دووڅخه ډیرخلک یي په خپل منځ کې ټینګوي ،چې داهم داړیکې یوه په زړه پورې بڼه ده چې راښکیل خلک پکې دیوبل نظرونه،ښه اوپه اسانی سره درک کولای شی .په دغه ډول اړیکه کی یوښه توب (غبرګون )دی چی نېغ په نېغه دشخص له خوا رامنځ ته کیږي .

په دغه ډول اړیکو کې داړیکو ماډل ټولې برخې ،اړین رول ترسره کوي. دا اړیکی ډیری وخت مخامخ وي نوځکه یوتن دبل تن له څیرې اوحرکاتو پوهیږي اوموضوع درک کوي.

**ج .اضافي خپل منځي اړيکې(extra personal communication)**

داهغـه اړيکې دي چې پـه هغې کې چـاپېريـال غوره رول لوبوي . دبيلګې پـه ډول : ځوک له يوه غيرژوندي شي، لکه ديوال ياله خاموشـه ژوندې شيانو، لکه نباتاتو سره غږيږي چې دي ډول اړيکوته اضافې خپل منځې اړيکې وايې .

**د – ټوليزې اړيکې :** (Mass Communication)

داډول اړيکې ډېرې پراخې اړيکې دي چې پـه هغـه کې ډير مخـاطبين برخه لري او دمخاطبينو دشميرمعلومول پکې ناشونی وي . داهم داړيکو يواړين ډول دی چې له ټوليزورسنيو اووسيلو پرته ، امکان نلرې .

دغـه ډول اړيکې د ورځپـاڼې راډيو اويـاتلويزيون لـه لاري ترسره کيږې . داد اړيکو ترټولو ځواکمن ډول ده خوپه دي ډول اړيکوکې غبرګون ځنډنی وي.

د بيلګې په ډول : که چيرې يو ولســمشرــ خپله بيانيه ، د تلويزيون يا راديو له لاري خپل ملت ته وړاندي کړي ، دغه ډول اړيکوته ټوليزي اړيکې وايې . داډول اړيکې او وينـاوې د نړۍ ټولې جغرافيـايي ســيمې پرتـه لـه کومې ځانګړې او محدودې پولې اغېزمنوې .

**هه – د ډلې ياګروپ اړيکې : (Group Communication)**

داهغه اړيکې دې چې دخلکو ډلګي ياګروپونه پکې برخه لري.

د بيلګې پـه توګـه : کـه چيرې يو تن د وګړو يوې ډلې تـه خطـاب کوي، ياهم ددوو ټولګيوترمنځ بحث او مناظره صــورت نيســې ، دې ډول اړيکې ته د ډلې يا ګروپ اړيکې وايي.

## داړیکو تګلاره
Procedure of Communication)(

داړیکې نیولوبهیرپه بنسټیزډول ، لاندې دوو شیانو پورې اړه لري .

- ✓ رمزاېښودنه (Encoding)
- ✓ رمزخلاصه ونه (Decoding)

**الف – رمزاېښودنه یا د پیغام ترتیبول : (Encoding)**

دا یو داسې عمل دی چې مختلف نظرونه ، تجربې ، پوهه ، افکار ، احساسات او کړنې سره یو ځای کوي او یو موثر پیغام ترې جوړوي څو مقابل وکړی یا پیغام اخستونکي ته انتقال او بیا پرې پوهه شي .

د رمزاېښودنې مانا داده چې، د مالوماتو تنه (اصل پیغام) داړیکو له یوه سیستم څخه داړیکودوهم سیستم ته واړول شي . د مالوماتو دغه اړول باید دکوډونو او رمزونو په بڼه وي ، دغه کوډونه دسمبولونو، نښو ، لیکونو یا خطونو په شکل کې وي چې پټه او ناڅرګنده مانا وړاندې کوي .

رمزاېښودنه د **(جان فیسک )** په وینا :

(( داله نښواو قواعدوڅخه جوړ دي ،دنښو او کوډونو د کارونې مفهوم او څرنګوالی څرګندوي چې څه ډول داکوډونه سره ترکیب شوي دي ، ترڅولاپېچلي پېغامونه رامنځته کړي )). دکوډونودغه نظام باید د اړونده ټولنې دغړو ترمنځ ګډ او ترلی

وي.داړیکوبهیر یې لـه لانـدې شــکـل څخـه پـه اســـانۍ دپوهېـدو وړ دی.

The Communication Process




Courtesy of Mindtools

**ب ـ رمز خلاصونه:(Decoding)**

دایو منل شوی حقیقت دی چې داړیکوبهیرنه شلېدونکی او تل جاري وي،یاني پای نه لري، ځکه که یو تن رمزاېښودنه کوي،نو بل تن یې رمز خلاصونه کوي.

درمز خلاصـونې مفهوم دادی چې،کله یو څوک  رمزاېښودنه وکړي،نودپیغام ترلاسه کونکی یې دخپلې ذهني پوهې اوتجربې مطـابق راژبـاړي. څومره چې پـه پیغـام کې رمز اسـانه اېښـول شـوی وي ،هغومره دتر لاسـه کوونکي له خواپه اسـانۍ دپوهېدو وړوي.

**د اغیزمنو اړیکو ضرورت او ارزښت** :

هرڅومره چې  د پیغام اوریدونکی  د پیغام اوریدو ته لیواله  (Receiver Oriented) وي . هغومره به موثروي ، د اړیکو څخه موخه د ترلاســـه کوونکي په کردار او رویه کې بدلون  راوستل دي ، پهځوی او عادت کې  تغیر د ااړیکو د اغیز نتیجه ده .

کلـه چې ته کوم دکاندار ته ووایې چې مهرباني وکړه ماته بوره راکړه   نو ته د پیغام ترلاســه کوونکي په رویه کې بدلون راوســتل غواړې  چې په نتیجه کې هغه تاته بوره درکړي که داسې وشي نو دې اړیکې ته موثره اړیکه ویل کیږي .

داسې اړیکه چې د پیغام ترلاسه کوونکي په رویه کې د پیغام لېږونکي د فکراو تصور مطابق بدلون رامنځ ته کړي موثر اړیکه ورته ویل کیږي .

**اغېزمنې اړيکې څنګه شونې ده :**

کله چې مونږ د موثرو اړیکو په اړه لولو نو له مونږ سره دا ســوال پیداکیږي چې اغیزمنې اړیکې څنګه شونې دي او غوښتنه يي څنګه کېدای شي .

د اړیکو په نیولو کې ، د اړیکو د وسیلې د انتخاب په وخت کې باید لاندې خبرې په ذهن ولرو .

## ۱ـ لاس رسی :

چاته مو چې پغام لېږل هدف وي ، دوی باید دې وسـیلې ته لاس رسی ولري ،که چېرې مونږ د بـاغواني اومـالـداری اعلان پـه انګرېزی ورځپـانـه کې خپور کړو نو زمونږ بزګربه هېڅ کله هم استفاده ترې ونه شي کولی او دا به هېڅ کله هم اغېزمنه اړیکـه نه وي ځکه چې بزګر انګرېزي ورځپاڼې ته لاس رســی نه لري او که يې وهم لري نه پرې پوهېږي .

## ۲ـ توان :

د اغېزمنو اړیکېو لپـاره دا هم اړینـه ده ، چـاتـه چې پیغـام لېږل شــوی ، له کومې وســیلې لېږل شــوی ،ایـا دوی يې د رانیولو توان لري او که نه ، مثلاً : یو اعلان له انټرینټ څخه یوازې لوســتي او هغه چې انټرنېټ او کمپیوټر ته لاسرســی لري ګټه ترې اخستی شي اوبس حال داچې زمونږ په هېواد کې ډېرکم داسې بزګر شته چې له کمپیو ټر او انټر نټ سره بلد وي حتی یدلی به يې هم نه وي .

## ۳ـ ژبه :

داغېزمنې اړیکې لپـاره د ژبې ټـاکنـه هم ډېره اړینـه ده ،کـه چېرې د لېرې کلیو او بانډو لپاره کوم پیغام لېږل وي او موږ يي په نورو ژبو ولیکو نو زموږ ادیکې ناکام او بې اغیزه دي .

## ټولنيز اقتصادي اړخ :

کله چې مونږ وايو چې د موثرو اړيکو لپاره زمونږ پيغام بايد د اورېدونکو له طبعيت، ضرورت او ميل سره عيار وي . دا معنې لري چې ، پيغام لېږونکی د خپل هدف وړ وګړي مزاج ، عمر، تجربې او د ده له ذهني برداشت څخه خبر وي . د پيغام لېږونکي اړيکه بايد له وخت سره عيار وي او بايد لاندې ټکي کلک په نظر کې ونيسي او په دې باوري وي چې .

۱ـ د ا ړيکو په وړاندې ټول پراته خنډونه يې لرې کړي دي .

۲ـ د لېږد مناسبه وسيله يې انتخاب کړې ده .

۳ـ پيغام يې په ښه بڼه چکتو کړی ده .

۴ـ اړيکې دوه جانبه دي .

او نور دا چې د پيغام تر لاسه کوونکی په علم ، تجربه ، او رويه کې مناسب بدلون راغلی نو پوه شه چې اړيکه اغېزمنه ده

### د موثرو اړيکو اساسي شرايط

د ډاکټر مهدي په وينا چې د پيغام تر لېږلو وروسته د دې د ناکامۍ يا کاميابۍ په اړه قضاوت يا وړاندوينه ستونزمنه ده خو تر يوه حده مونږ اندازه کولی شو چې ، د يوه پيغام برياليتوب ترکومه بريده شوني ده ، د دې حالاتو او شرايطو څخه بايد خبروو چې د موثرو اړيکو لپاره ضروري دي .

که چېرې دا حالات او شرايط په پام کې ولرو نو امکان لري چې د کار شه پايله به هم ډيره په زړه پورې وي .

### د پيغام اوتوجه ترمنځ اړيکه :

که مونږ دومره په ټيټ اواز وغږېږو چې دوهم شخص زمونږ خبره وانه وري يا په داسې ژيه خبرې وکړو چې مخاطب پرې نه پوهېږي نو مخاطب به کله هم مونږ ته متوجې نه شي .

که د راديو له لارې څوک ســتا پيغام وانه وري او يا خلک راديو ونه لري ، نو ســتا پيغام ضـايع کيږي ، که څوک کوم ماشـوم وګوري او ورته مسکی شي او ماشوم بل طرف ته ګوري نو د ده موسکا به په ماشوم هېڅ اغېز ونه کړي.

## د پيغام او تجربې اړيکه :

په پيغام کې داســې کليمې ، تشــبېهات او اصــطلاحات کارول چې لدې وړاندې اورېدونکي نوي تجربه کړي ، نو پيغام به اغير موثر وي ، له دې سره سره که چېرې پيغام د اورېدونکي له تجربې سره په ټکر کې وي ، نو بيا به هم غير موثر وي .

مثلاً : کـه يو ســيـاسي ګونـد د خپـل نمائنده په اړه داســې خلکوته چې د دوی د نمـائنـده له کړو وړو ښخه خبر وي ،دی ورته معلوم ، کردار او رفتار يې ورته معلوم وي داســې خبرې وکړي چې د دې خلکو له تجروبو سره په ټکر کې وي نو خلک به هېڅ بـاور پرې ونه کړي ، که د دې ســيمې د خلکو تجربه داوي چې کانديد يو بې ايمانه او خاين سـړی ده او ګوند يې دا ، اعلانوي چې فلانی کانديد ډېر صـادق او ايمانداره سړی ده ، دا خبرې به غير موثرې وي ، ځکه چې پيغام د خلکو له تجربې سره په ټکرکې ده ، او ازموده را ازمودن خطا است ، دا سړی يو ځل ازمويل شوی .

## د پيغام او شخصيت ترمنځ اړيکه :

زمونږ هر اقـدام هغه که شــعوري وي او يا غيرشــعوري ،زمونږ د يوې مهمې اړتيا پراســاس ترسره کيږي ، کـه چېرې مونږ تاوده شي ته لاس ور وړاندي کوو او لمس کوو يې نو سمدستي لاس ترې لرې کوو چې له سوځېدو وژغورل شو ، په يوه ځانګړي چـاپېريال يا حالاتو کې زمونږ کړه وړه پدې ډول وي چې مونږ خپل هدف ته نيږدې کړي ، په رســنيو کې اعلان جوړونکی د پوه د انســان کمزوري درک کولای شي نو دوی زمونږ د شــخصــيت اړتياوې را څرګندوي يايې راته په ګوته کوي او د تکميل لپاره موږ راپاروي او هغه څه راته اعلانوي چې زموږ ضرورت وي .

## د پیغام او چاپېریال ترمنځ اړیکه :

انســـان دچـاپیریال تابع دی کله چې پیغام چمتو کوو اړینه ده چې د اورېدونکو یا مخـاطبانو چا پېریال او حالات دقیق مطالعه کړو څو حالات ددې اجازه ورکړي چې زموږ دپیغام منلو ته جوګه شي ، که نه نو پیغام به مو بې اغېزې وي . مثلاَ :

که موږ ټولنې ته د ماهي د غوښــې ګټې بیانوو چې د ماهیانو د غوښــې خوراک د بدن لپاره مختلفې ګټې لري نو لازم دی چ هغوی لومړی ماهیان وپیژني ، بیا به یې د خوراک پـه اړه خبرې کټورې وي له دې مخکې هیڅ ګټه نه لري ، او همدارنګه باید ماهي په بازار کې پیدا شي څو یې خلک واخلي ، وې خوري او داسې نه نه وي نو هیڅ دی او موږ دغه نظر به کله هم موثر نه وي .

په همدې ډول که ته د شـخصـیت جوړولو په خاطر د ښـو جامو په اغوستلو ، دنشه یې په اسـتعمال ، دښـکلو موټرو په لرو او ظاهري پوزیشـن باندې تکیه کوې ، فکر کوم دا بـه په یوه پښـــتنه ، درنده ، فکري او علمي ټولنه کې لویه ســـهوه وي ځکه خلک دانسان کړنې ته ګوري نه ظاهري لباس ته . ښه مثالونه یې زموږ دټولنې هغه وکیل صـاحبان دي چې د تیرو ټاکنو په دوران کې یې د وطن پالنې نارې وهلې کله چې دعمـل میـدان راغی موضـــوع سرچپـه را ووتـه ، نو کلـه چې له چاپیریال سره مناسـب او لازم عمل ونه کړو سمدستي له لوی غبرګون او بالاخره له ماتې سره مخ کیږو ځکـه انســـان ، دانســـان کړنې او چاپیریال سره تړلي ، یو له بل څخه هیڅ د خلاصـــون لار نه لري . همدارنګه که هندوســـتاني محیط کې موږ د غوا دغوښـــې دخوړلو هر ډومره صـفت وکړو موږ ناکام یو ، وینا مو هیڅ ګټه نه لري ځکه هلته د غوا د غوښـې خوړل دهندي مذهب په اسـاس ناروا عمل دی ممکن له لوی مشکل سره مخ شــې هر څومره تبلیغ چې وکړې بې معنی او بې مفهومه دی او امکان لري دهندوانو او مسلمان تر منځ لویه لانجه را پیداکړي .

## 4: ډله ییزې اړیکې (Mass Commmunication)

د اړیکو مهم او باارزښته ډول دی. په دې ډول ارتباط کې پیغام د یو وګړي، ډلې یا ارګان (Source) څخه د یوې وسیلې یا شخص په وسیله یو زیات شمېر وګړو ته رسېږي او له دې لارې شخص یا ارګان خپل نظریات، افکار، عقاید، معلومات تجربې او اطلاعات نورو وګړو، ډلو (Reciever) ته انتقالوي څرنګه چې په دې ډول ارتباط کې له نورو ډولونو څخه زیات شمېر خلکو ته پیغام رسېږي، نو له همدې کبله یې ارزښت هم د ارتباط له نورو ډولونو څخه زیات او مؤثر دی.

د ارتباطاتوعلماوو ډله ییزې اړیکې هم په دوو ډولونوېشلې دي.

(۱) قلیل الګروهي ارتباط (لږ ډله ییز اړیکې): (Small Group of Micro Communication)

(۲) کثیر الګروهي ارتباط (ډېر ډله ییز اړیکې): Macro Mass Communication

### (۱) قلیل الګروهي ارتباط (لږ ډله ییز اړیکې):

په دې ډول اړیکو کې د اورېدونکو(Receiver) شمېر کم وي په اسانۍ سره یې شمېر معلومولی شو، د منبع (ویناوال) پیغام مخامخ ورته رسیږي، ددې ډول ارتباط یو ځانګړی ښه صفت دا دی چې پیغام اورېدونکی د پیغام په اورېدلو سره فوراً غبرګون ښيي، یعنې د پیغام د منلو یا ردولو غږ کولی شي، لکه په صنف کې د استاد لکچر، په ولسي۔ جرګه کې د وکیلانو اوحاضرینو ویناوې په مجسدونو کې د علماوو او پوهانو ویناوې، په کنفرانسونو، غونډو او لاریونونو کې د خلکو خبرې او غږونه او داسې نور دې ته ورته مجلسونه په دې ډول ارتباط کې شمېرل کېږي، چې مخامخ د پیغام د منبع او پیغام اخېستونکي تر منځ پیغام تبادله کیږیز (14: 9).

### (۲) کثیر الګروهي اړیکې (ډېر ډله ییزې اړیکې):

په دې ډول اړیکو کې د پیغام د اخېستونکیو شمېر بالکل، لوړ (زیات) وي، معلومول یې ګران او مشکل کار دی. غبرګون د پیغام په مقابل کې ژر نه معلومیږي، دې دول ارتباط کې د پیغام د خپرولو لپاره یوې ډله ییزې رسنۍ ته

ضرورت وي او لـه رســـنی پرته امکان نه لري. په دې ډول ارتباط کې ډېر خلك او ســـيمـه لـه خپـل اغېز لانـدې نيول کيږي، مګر د پيغـام پـه مقـابـل کې د پيغـام اخېســـتونکو غبرګون ژر نه معلوميږي، مياشـــتواو کلونو ته ضرورت لري،عموماً يې غبرګون د سروې، څېړنو او د پيغام اخېســـتونکو له خطونو څخه معلوميږي، چې پوره وخت ته ضرروت لري. (7: 17).

**د ډله ييزو اړيکو وسيلې (Source of Mass Communiction)**

دارتباطاتو پوهانودا وسيلې په دوو ډلو وېشلي دي،چې عبارت دي له:

(1) مطبوعاتي وسيلې (Print Medium)

(2) برق (اليکترونيکي) وسيلې (Electrocal Medium)

په مطبوعاتي (چاپي) وسـيلو کې ورځپاڼې، اونيزې، مجلې، ډايجسټ، کتابونه، پوسټرې، پمفلېټ او دې ته ورته نورې هغه وســـيلې شـــاملې دي چې چاپيږي، هره يوه به يې په لنډ ډول تشريح کړو:

## ورځپاڼې (Daily News paper):

په اوسني تکنالوژيکي دور کې ورځپاڼې د ډله ييزو اړيکو يوه مهمه تحليلي، څېړنيزه علمي، ايډيالوژيکه، شعوري، تبليغاتي، سياسي ،فرهنګي او معلوماتي وسيله ده، چې تقريباً هره ورځ يې څلور اربه (څلور زره مليونه) انســانان مخې ته بږدي او ګوري يې، دخپل ذوق او ميل معلومات ترې اخلي.

ورځپـاڼې عمومـاً هغه چاپي موقوتي (ټاکلی وخت)خپرونو ته وايي چې هره ورځ او يا په اونۍ کې درې يا څلور ځله چاپيږي او د خپلو مينه والو (لوســـتونکو) لپاره ذهني خوراك برابروي. لوستونکي يې اخلي او بيا يې په داسې ځای کې لکه کور، دفتر،کتابتو او يـا نورو ځانګړو ځايونو کې لولي ،لوســـتونکي له ورځپاڼو څخه مختلف ســـياسي، اقتصادي، ساينسي، علمي، ادبي،معلومات اخلي او هم د هېواد او نړۍ د مختلفو مهمو پېښو په هکله ضرور، تازه ،جدي معلومات اواطلاعات د لوستلو له لارې لاس ته راوړي.

د هېواد او اســلامي نړۍ د فخر ځېره افغان ســېدجمال الدين وايي چې (ورځپاڼه د ټولنې مهربانه، طبيب، رېښـتينی ناصح، بيدار او ځيرك ساتونکی، د تاجرانو لارښود، د چارواکو او حاکمانو ښــه مشــاور، د بصــيرت د خاوندانو لپاره ځلېدونکی نور او د ســياســت پوهانو لپاره دســتور دی ، همدارنګه زياتوي د ملتونو او امتونو مختلفې نــاروغی د مطبوعاتو له لارې درمل کيږي . ټولنه د غفلت له خوبه راويښـــوي او د بيداري خوا ته راکاږي. (4: 15).

**ناپليون وايي**: (زه د ډېرو ځواکونو په نســبت له يوې ورځپاڼې څخه زيات وېرېږم). (5: 18، 5).

فردريـك کبير وايي هر حکومـت چې ښـــه مطبوعـات ولري بندي خانو ته ضرورت نلري.

**ميسټرتهامسن جيفرسن ليکي:**

(که له ما څخه پوښـتنه شي چې په هېواد کې بې له ورځپاڼې حکومت وي او که بې له حکومته ورځپاڼه؟ زه به هر ومره دوهمه خبره غوره وګڼم.

هر څوك چې دوه شيان ولري نېك مرغه دي يو ښه کتاب او بل داسې ملګرى چې د کتابونو په ګاڼه سنبال وي)

**پوانکاره ليکي:** مطبوعات د لرغوني تاريخ بنســټ دی هېڅوك بايد خپل تاريخ ګډ وډ او شکمن نکړي. څوك چې دمطبوعاتو ازادي محدودوي هغه د خپل هېواد تاريخ ته خيانت کوي بايد زياته مطالعه وکړو چې پوه شو نه پوهيږو. (5: 180، 118)

**دکـارت ليکي**: مطـالعـه يواځينۍ لار ده، چې هغه لويان وپېژنو او دوی سره خبرې وکړو، چې څو پېړۍ مخکې يې له خاورو لاندې خپله هستوګنه غوره کړې ده. (5: 175، 176).

**مولانـا ظفرعلي خـان ليکي**: (حقيقـت دا دی چې د ملك او ملت د اصـــلاح لپاره مطبوعات ډېر ضروري دي.) (18، 5).

ځرنګه چې مطبوعات د ټولنې سالمه لارښوونه په غاړه لري، مسؤولین یې د ټولنې د ټولو وګړو په نسـبت د مختلفو سـیاسي، اقتصـادي، فرهنګي پېښـو د پوهېدو او د پېښـو د زیان او ګټې د معلومولو په خاطر ډېر ځیرك، هوښـیار او بااحسـاسـه خلك دي، نو باید د هېواد او نړۍ د مهمو خوځښتونو او اطلاعاتو په هکله خپلې ټولنې ته داسـې لارې چارې، چې د ملت لپاره په زړه پورې پایلې ولري، وښـیي دا ځکه چې ژورنـالیسـتـان د ټولنې (ملـت) نمـاینده ګان دي، د حکومت او ملت تر منځ د پله حیثیت لري، باید په خپلو وسیلو (ورځپاڼو) کې داسې څه ولیکي چې خیر او ښېګڼې یې ټولنې ته ورسیږي.
په ټولنه کې په خاوره، دین او ملت مین ژورنالیسـتان د ښېرۍ د ماڼو حیثیت لري، خپله ملي ښېرۍ باید په هر ډول حالاتو کې د قلم، ځیرکتیا، ذکاوت، هوښـیارۍ او پوهې پـه وسـیلـه لـه مختلفو خطرونو څخه بچ او خپل اسـاسي، ملي هدف ته یې ورسوي ، هغه ملتونه چې ملي او وطن پرسته ژورنالستان او لیکوالان لي هغوی تل له ملي او نړیوالو پیښو ځان مصون ویستلی دی ، دټلنې ټولو وګړو ته یې داسې سالمه لارښودلې چې له مشکله پرې بچ شوي دي .
ورځپاڼې هم په خپل منځ کې د وخت له کبله په دوو برخو وېشل شوې دي،سهارنۍ ورځپاڼې او مازدیګرنۍ ورځپاڼې، هغه ورځپاڼې چې عموماً د شپې له 12 بجو وروسته د ورځې تر 12 بجو پورې خپرېږي. سـهـارنۍ او هغه چې د ورځې له 12 بجو څخه وروسته خپرېږي مازدیګرانۍ بلل کېږي.
ورځپاڼې د محیط (جغرافیایي) موقعیت له مخې په څلور ډولونو وېشـل شوې دي. عمومي(سرتـاسري) ورځپـاڼې، ولایتي ورځپـاڼې، شـهري ورځپـاڼې او اختصـاصي ورځپاڼې.

د نړۍ لومړۍ ورځپاڼه له نن څخه دوه زره (2000) کاله مخکې د چین په هېواد کې خپره شـــوه، چې (ټي پـاو) نومېـده، چې د (ځـایي خبرونـه ) مـانا ورکوي او تر (1911ع) کاله پورې د پیکن گزټ په نوم جاري وه، او دا دی نن ورځ ورځپاڼه د انســـان د ژونـد یو مهم اړخ گرځېـدلی، پـه نړۍ کې په میلیونونو ورځپاڼې د ورځې چاپ او نشر ته سپارل کیږي. (6: 34، 35).

ورځپاڼې که سهارنۍ وي یا مازدیگرنۍ اصلي دنده یې د خپلو لوستونکو لپاره مهم ایډیالوژیکي، تحلیلي ، علمي او سیاسی مسایل په تفصیل سره برابرول دي او ټولنې تـه خپرول دي ، چې د انســـاني ژونـد په ټولو برخو کې مهم په زړه پورې کردار ادا کوي د ټولنې د ټولو قشرـــونو (ځوانـان، مـاشـــومـان، ښـــځینـه، عـالمـان، پوهـان، سیاستمداران) او نورو لپاره مهم هر اړخیز معلومات او ذهني خوراك برابروي ، ولې د یو ویشتمې پیړۍ ورځپاڼې د برقي رسنیو درقابت په خاطر مهمې ، نوې او ځینې تازه پېښـــې د فیچر په ژبه او چوکاټ کې خپروي څو خپل لوســـتونکي د ادبي ژبې له ذوق او خوند سره اشنا او را جلب کړي. (16: 36، 37).

2: **اوونيزې** (Weekly News Paper): په اوونیزو کې د عوامو په زړه پورې، جالب، علمي، ادبي، ســیاسي، راپوروونه، څېړنې، مضــامین او معلومات خپریږي، څرنگه چې اوونیزې د ورځپاڼو په نســبت زیات وخت لري، نو د مختلفو پېښــو په اړوند په زړه پورې تحلیلونه، تبصرې، کالمونه، فیچرونه، او معلومات وړاندې کوي. همدا رنگه د خپلو لوســـتونکو د ذوق د خړوبولو، د ذهنونو د روښـــانه کولو او ذهني تفریح لپاره مختلف مذهبي، ســـیاسي، ټولنیز، کلتوري معلومات او راپوروونه وړاندې کوي، چې لوســـتونکي یې راضي او د ژوند د مختلفواړخونو په هکله مهم تحلیلي او ایډیالوژیك معلومات ولولي. (16: 38).

اوونیزو ته د (ډراینگ روم مگزین) نوم هم ورکول کیږي. په اوونیزو کې لاندې درې ډوله اوونیزې موجودې دي.

1- د ورځپاڼو اوونيز چاپ (د ورځپاڼو اوونيزه ضـميمه). 2: هغه اوونيزې چې په اوونۍ کې يو ځل چاپ او خپريږي. 3: فيشني مجلې.

**2- د ورځپاڼو او اوو نيزو چاپ:** (Weekly Edition of Newspaper):

سيف الرحمن (2009) په دې هکله ليکي: په اوونيزو کې هغه ډول ضميمې شاملې دي، چې د ورځپـاڼو د اوونۍ پـه اخر کې چاپيږي، چې عموماً مختلف النوع رنګونو څخـه پکې کـار اخيسـتـل کيږي، د لوســتونکو لپـاره ډيرې پـه زړه پورې وي، چې اکثريت موضـوعات يې اجتماعي، سياسي، سفرنامې، ترجمې، ادب او په زړه پورې علمي ادبي او کلتوري خبرونـه او تحليلي معلومـات وي او ځينې تشرــيحي بر خې چې په انساني ژوند کې يو ځانګړی ارزښت لري خپريږي.

**اوونيزې مجلې** Weekly Magazine:

عموماً دا هغه مطبوعاتي او موقتي خپروني دي، چې په اوونۍ کې يو ځل چاپيږي، د هيواد او نړۍ پـه هکله مختلف ملي نړيوال، ســياسي، اجتماعي، کلتوري، ادبي، عقيـدوي، ايـډيـالوژيکي معلومـات، راپورونـه، مقـالې، کالمونه، تبصرــې او خبرونه خپروي. پـه دې ډول اوونيزو کې معلومـات ډير ژور، تحليلي او پـه مشرــح ډول خپريږي. لوســتونکي يې اکثره هغـه عـادي خلك او لوړ پوړي چارواکي وي، چې له ژورو، تفصـيلي معلوماتو او مسـايلو مينه لري په ځانګړي ډول دفتري کارکوونکي ، ځوانان ، او هغه مصــوف خلک چې د اونۍ په څو ورځوکې مصرـف وي نو د اونۍ ډيرې معلومات له همدې مجلو څخه اخلي .

**لباسي (فېشني) مجلې** Fashion Magazine:

له دې ډول اوونيزو څخه هغه اوونيزې عبارت دي چې اســاســاً علمي معلومات په کې کم وي اکثره موضــوعـات يې په لباس او فېشــن پورې تړلي وي، چې عموماً ښځينه او نارينه وو لپاره مختلف النوع لباس. د کورونو لپاره مختلف النوع کورني وسـايل، لکه پردې، کټونه، شـيشـې، او نور هغه زينتي شيان ، لوازم او مواد چې په

عصري کورونو او تعمیرونو کې استعمالیږي، همدارنگه د بدن د ښه صحت لپاره مختلف طبي معلومات او دې ته ورته لارې چارې چې په کورونو کې د زینت او د ښځو د ښکلا لپاره په کاریږي خپریږي.

3: **مجلې** Peridoical:

د مجلې د لفظ مترادفه کلمه په انگلیسۍ ژبه کې Magazine او Periodical دی، چې هدف ورڅخه هغه خپرونې دي چې د وخت په یو خاص او ځانگړي دوران کې چاپ او ځانگړې علمي، تېز، پاروونکي، ادبي او کلتوري مواد د ټولنې دېرمختگ اوملي کلتور ، د بډاینې ، د ټونې د اخلاقي ، عقیدوي او کلتوري مسایلو پورې تړاو لري لپاره خپریږي.

په مجلو کې عموماً اډیری هغه مواد چې په دلایلو او شواهدو باندې ثابت وي خپریږي، په مجلو کې د ورځپاڼو او نورو اوونیزو په نسبت ډېر ژور، ایډیالوژیك، مختلف ادبي، مذهبي، کلتوري، سیاسي او علمي مواد خپروي. اکثر لوستونکي یې د ټولنې لوړ ، پوه، ماهرین او یا سیاست پوهان وي.

خصوصاً د ټولنې هغه قشر چې غواړي د اکثرو مسایلو د پوهېدو لپاره ژورو، مدللو، حقیقي موادو ته ضرورت لري ځوموضوع د دلایلو په رڼا کې وگوري؛ نو ځکه یې اکثره لوستونکي مفکرین، پوهان، څېړونکي او عالمان وي، چې د هېواد او نړۍ د مختلفو مهمو او اساسي مسایلو په اړوند د مسالې اصلي تل ته ځان ورسوي، وې څېړي او د خپل ژوند د سهولت لپاره اسانه، گټوره لاره ، پیدا او اختیار کړي.

داډول خپرونې عموماً د وخت او زمان له کبله میاشتنۍ، درې میاشتنۍ او شپږ میاشتنۍ دي. څرنگه چې د خپراوي لپاره کافي وخت لري، نو ځکه یې مواد هم تحلیلي او څېړنیز وي، کولی شي مختلفو مسایلو ته د رسېدو لپاره په لوړه بیه مواد راجمع، له ترتیب او تنظیم وروسته یې د خپلو لوستونکو لپاره چاپ او خپاره کړي.

**ډايجسټ** Digest:

لـه ډايجســـټ څخـه هـدف هغه وړې رســـالې دي، چې په هغو کې له نويو خبري اطلاعاتو، معلوماتو څخه علاوه مختلف مواد په پرله پسـې (مسـلسل) ډول خپريږي، دا تقليد د نړۍ په نورو هېوادونو کې د امريکې د ريډرز ډايجســټ خپرونې سره د مينې او علاقې له مخې شــوی دی. په دې ډول خپرونو کې د تازه پېښــو په هکله مختلف نوي مضـامين، مرکې او معلومات خپريږي او هم په مسلسل ډول مختلف مضــامين په مختلفو ګڼو کې خپروي. لوســتونکي يې په مســلســله توګه ټولې ګڼې ترلاســه کوي او دخپلې خوښــې معلومات ترې لولي. ډايجســـټ عموماً په لاندې ډولونو وېشل شوي دي.

جاسوسي ډايجسټ، ښځينه ډايجسټ، مذهبي ډايجسټ، سياسي ډايجسټ، خاص (ځانګړ) ډايجسټ او د ماشومانو ډايجسټ. (5: 48، 49).

جاسـوسي ډايجسـټ: په دې ډول ډايجسـټ کې د جرمونو او جرمونو پورې مربوط اعمال او تړاو لرونکي کسان له دندو څخه بر طرف کېدل، د خلکو غبرګون، د لرې کېدو علت، اســتعفاګانې، د مجرمينو پلټنه، درك معلومول او نور عمومي اجتماعي مسـايلو باندې ليکنې، نظريات، څېړنې، جاسـوسي، پوليسيـ ناولونه او لنډې کيسـې خپريږي که د کې جي ،بي او سي ای اې تر منځ د سـنوډن مسـله را وسپړل شي د دې ډول ډايجسټ لپاره ښه موضوعات جوړوي .

ښځينه ډايجسټ:

ښـځه د لوی خدای يو ظريف مخلوق دی ، دظرافت ، صـفايي ، کورني کار او ورته مســايلو سره يې سر و کار وي ، په ښــځينه ډايجســټونو کې عموماً هغه ډول مواد خپريږي، چې د ښځو د ژوند په مختلفو برخو پورې تړاو لري، لکه د ماشومانو روزنه ښــځينه لباســونه، زينتي شــيان، د خاوند او مېرمن تر منځ اړيکې، دمينې محبت کيسـې، د زانهړوو لپاره د ښـکلا سا مان الاتو په اړه معلومات ، ناولونه او له مختلفو

ښځو سره مرکې چې په ژوند کې لوړې او ژورې لیدلې وي ، له مختلفو نادرو کیسو او پېښـو سره مخامخ شـوې وي ، چې په مینه او محبت سره یې کړې وي. دا ډول خپرونې د ځوان نسل تر منځ د ارتباط او د ژوند د ښه پر مخ بېولو کې په زړه پورې ارزښت لري ډېری لوستونکي یې هم ځوانه طبقه وي .

**مذهبي ډایجسټ:**

د ځمکې پـه سر هر قوم او ملـت د یو نه یو ډول دین پیروان دي، او هر دین پیروان علماء، پوهـان، مفکرین ، واعظین ، مبلغین او لیکوالان لري، نو ددې لپـاره چې د دوی عقیده، د دوی د دین پیروانو ته په اسانه ډېرو خلکو ته ورسیږي، کوشش کوي په مذهب پورې مربوط مختلف مذهبي، فقهي مسایل چاپ او خپاره کړي، خصوصاً پـه اســلامي نړۍ کې چې مـذهـب تـه ډېر احترام لري، مختلف عقیـدوي، دیني، مسـایل خپروي ، بیا په ځانګړو وختونو او میاشـتو کې لکه د روژې په میاشـت کې روژې پورې مختلف مسـایل، همدا رنګه د روژې د فضـیلت په هکله، په لوی اختر کې د قربـانۍ د فضــیلتونو، ذکـات، د حج په وخت کې د حج، لمانځه او نور هغه مسایل او معلومات خپروي، چې د مسلمانې ټولنې د روزنې، اصلاح او تربیت سبب ګرځي او همـدا رنګه د هېواد او نړۍ مختلف ســیاسي موضــوعات د خپل دین د پوهې او معلوماتو په رڼا کې تشرــیح کوي څو دموضــوع اړوند معلومات ټولو ته په مناسب وخت او ځای کې ورسیږي (4: 48، 49).

**سیاسي ډایجسټ:** Political Digest:

په دې ډول خپرونو کې عموماً د هېواد او نړۍ په هکله مختلف سـیاسي، مضامین، نیوکې او معلومات خپریږي خصـوصـاً د هغو نویو پېښـو په هکله چې په هېواد او یا نړۍ کې نوي حرکـات، بـدلونونـه او تغییرات راولي، خپریږي، پـه دې ډول پېښــو بـانـدې د مختلفو پوهانو له خوا تحلیلونه او څېړنې کیږي. د هېواد د چارواکو لپاره په زړه پورې مشورې ورکوي له مهمو مشهورو او باتجربه کسانو څخه مشورې اخلي

، دهغوی تبصرې خپروي څو د مسایلو تل په اسنادو ، مدارکو او شواهدوسره ثابت شي . مسایلو راتلونکئ پس منظر څیړي، د موضوع په اړوند له مسلکي ځیرک سیاست پوهانو، عالمانو او څېړونکو سره مشورې کوي. دا ډول خپرونې د مختلفو سیاسي، کلتوري ډلو، د مشرانو، پوهانو، عالمانو او لوړ پوړو چارواکو له خوا لوستل کیږي، چې د هېواد او نړۍ په هکله په مهمو پېښو توطیو، پلانونو او نقشوڅخه خبر شي او په مقابل کې هغه لاره خپله کړي چې د هېواد ملت او انساني نړۍ لپاره په کې خیر وي، دا خپرونې عموماً د مفکرینو او سیاستوالو دذهن خوراك برابروي، چې ددې ډول خلکو تر منځ د ارتباط یوه مهمه په زړه پورې وسیله ګرځي، او د موضوع په اړه خپلې تجربې او افکار سره شریکوي.

**ځانګړې ډایجسټ** Professional Digest:

د نړۍ انسانان په مختلفو رشتو او برخو کې تجربې او تخصص لري دوي په ځانګړیو ډایجسټونو کې خپل همغږه او مسلکي تجربوي سره شریکوي. دې ډول خپرونو کې عموماً هغه انساني ډله چې په ځانګړیو کسبونو کې مهارت لري، په موضوع، مسلك او کسب پورې مربوط نوي معلومات خپروي. په ځانګړې توګه د صحت، انجینرۍ، زراعت، ساینس، فارمیسي، فني ، مالداري او داسې نور.

په پورته څانګو پورې مربوط نوي معلومات، تغییرات، اختراعات، مرضونه، مختلف پلانونه او ځانګړي معلومات چې د ټولنې په خیر او د دوی د علمي پرمختګ سبب ګرځي یا د مرضونو د مخنیوي لپاره نوي لارې چارې پیدا شوې وي، خپروي. په دې ډول خپرونو کې د عادي خلکو لپاره داسې په زړه پورې شی نه وي، خو د مسلکي خلکو لپاره په زړه پورې نوي معلومات خپروي. ځکه خو یې لوستونکي او مینه وال هم ځانګړي خلك وي او هره ډله خپلو مینه والو او هم مسلکو ته په زړه پورې نوي معلومات خپروي. مثلاً د فارمیسي ماهران د ډاکټرانو لپاره د مختلف النوع دواګانو په هکله معلومات خپروي، ساینس پوهان مختلف نوي کشفیات نویو

ســاینس پوهانو او طبي ماهرانو ته نوي معلومات خپروي، لکه په نړۍ کې د خوړې انفلواینزا د مرض په ضـد د نویو درملو او یا واکسین اختراع دسرطان ومرض ارزانه دوا یا واکسین ، د ایډز ،،،،، .

**دماشومانو ډایجسټ (Children Digest):**

ما شوم دهر کور ښکلا ، د والدینو دسترگو یخ والی ،د زړه سر او د د سبا، مشران ، حـاکمان، پلاران، واکـداران او عالمان دي. د تعلیم او تربیې وزارت د ماشـــومانو د تفریح، ذهني ذکـاوت د لوړتیـا او پوهې لپـاره مختلف رنگـه پـه زړه پورې کتـابونـه برابروي چې دموضـوعاتو مختلف ښـکلي انځورونه هم پکې شـتون لري. له کتابونو سره سره د مطبوعاتو مســلک پوهان د ماشـــومانو د ذهني ودې، لوړتیا، تربیت او ســـالمې روزنې لپـاره مختلف پـه زړه پورې تقریري، تحریري ســـوالونـه،چـارټونـه، تصـــویرونه، مســـابقې او پروگرامونه برابروي، چې ماشـــومان په ذهني توگه ځیرك، هوښیار او بیدار تربیه شي، په راتلونکي ژوند کې د ځان، کور، هېواد او نړۍ لپاره د یو ســـالم، برجســـتـه او پوه انســـان پـه توگ کار وکړي ، دټولنې پراوړو بار نه شي دماشومانو په ډایجسټ کې عموما دماشومانوپه پالنه ، روزنه، ښوونه او تربې په اړه معلومات خپریږي ، او همدارنگه هغه ســالمې اداري چې د ماشــوانو په روزنه کې مخکښــې وي دهغو مختلفې ځانگتیاوې ذکر کیږي ، که څوک غواړي هغې اداري ته خپل ماشومان د روزنې اوتربې لپاره معرفي کړي .

## کتابونه(Books):

کتاب د علم او پوهې د انتقالولو ارزانه او بهترینه وسیله ده، په تنهایی کې یو ښه گټور ملگری، د جهالت او ناپوهۍ دښمن، د انساني پوهې، تجربو، معلوماتو، افکارو، عقایدو او نظریاتو ښه انتقالوونکی ، ساتونکی، او د ټولو علومو یوه گټوره خزانه ده ، به دې عصرـ کې چې چا دکتاب ملگرتیا کړې هغوی د ژوند ټولو موخو ته رسـیدلي دي او چا چې د کتاب ملگرتیا پرې ایښې هغو ی د نورو به دروازه او کور کې په بې

موخې چوپړ لګیا دي  غږ یې نه اوریدل کیږي دیو لوښي په شان ترې نور خلک ګټه اخلي . دا چې کتاب لوی او لوړ ارزښت لري په اړه یې د عالمانو نظرونه لولو.

جفرســـن وایي: څوك چې کتـاب لولي هغـه د لوړواخلاقو  خـاوند وي او هېڅ وخت یوازې نه وي.

د کتاب پاڼې د هغو زړو په شان دي چې زموږ روح د رڼایي په لوري بیایي.

اناتول فرانس وایي: انســان په کتاب کې داســې شــیانو سره مخامخ کیږي، چې په ســترګو یې نه ویني، ځکه چې هغه په زرګونو کیلو متره لرې او یا زیات وخت پرې تېر شوی دی.

اسمایلز وایي: د بشر ډېره ستره سپړښتنه (رابرسېره کونه) کتاب دی. د یوه ملت د اخلاقو، روحیاتو، شــوق او فکر د پېژندلو لپاره باید هغه کتابونه اومطبوعات په پام کې ونیول شي چې دوی یې لولي. (6: 178، 179، 181).

په نړۍ کې چې څه علمي تحقیقات او تجربې سرته رسـیږي، د کتاب په وسـیله په ښــه ارزانـه توګـه نورو ته رســیږي، ویل کیږي چې کتاب په ژورنالیزم کې نه دی شــامـل، خو پـه غربي هېوادونو کې لـه کتـاب څخـه د ژورنـالیزم پـه ډګر کې کـار اخېستل کیږي، چې ښه مثال یې په امریکا کې خپرېدونکي (نړیواله جغرافیه( World Geography)کتاب دی. (6: 37، 38).

کتـاب عموماً د ټولو علومو پـه انتقال کې مهم نقش لري، خو د اجتماعي علومو په انتقال او تسلسل کې بارز او نه هېرېدونکی کردار ادا کوي، چې موجوده ځوان قشر د خپل هېواد او نړۍ له لرغوني ، تېر تاریخ، کلتور، مېړاني، ویاړونو او سرښندنوڅخه خبر شي، د تېرو خلکو له تجربو او پوهې څخه ګټه واخلي او راتلونکو نســلونو ته یې د یادګار په  توګه ورسوي.

د ملگرو ملتونو د (یونسکو) د اداري له مخې د کتاب د مخونو شمېر باید 49 مخه وي، لنډه دا چې کتاب دعلم، پوهې تجربو او معلوماتو په انتقال کې بهتر کردار ادا کوي، چې هره ورځ یې په ملیونو انسانان پاڼې اړوي رااړوي.

عموماً کتاب چې هر ډول په لاندې امتیازي ځانګړتیاوې لري. (11: 67، 68).

۱: کتاب د ارتباط د نورو وسیلو په نسبت اسانه او ارزانه ترلاسه کیږي.

۲: په کتابونو کې د پوهو، باتجربو عالمانو او روشنکفرانو تجربې وي.

۳: کتاب په زړه پورې ښوونیز حیثیت لري، موضوع په عالي او علمي معیار تشریح کوي.

۴: د تکنالوژۍ په دې عصرکې چې نړۍ یې د یو ورغعوي په شان سره نږدې کړې، بیا هم کتاب د علم، پوهې اومعلومات د اخېستو، د تجربو د شریکولو او د ارتباط د ټینګولو بهترینه او په زړه پورې وسـیله ده چې د ورځې یې په بیلونو انسـانان پاڼې اړوي را اړوي.

۵: کتابونه دساینس د پرمختګ لپاره ضروري، د علم او پوهې د خوندي ساتلو لپاره بهتر صندوق او ساتونکی دی.

٦: کتـاب د مخلفو علمي ، سـیـاسي ، اکـاډومیکو وګړو د افکـارو او نظریـاتو هغـه محصول دي چې په رڼا کې موږ د ژوند مختلفې چارې سمبالوو .

**پمفلټ** Pamphlets:

پمفلـټ تـه پـه پښـتو، دري او اردو ژبـه کې کتـابچه هم وایي، په پمفلټ کې د کومې مسلې او پېښې په اړوند تفصیلي معلومات نه خپریږي، فقط د مسلې، پېښې، اداري یـا کمپنۍ پـه هکله لنډ، تعارفي (پېژندګلویز) معلومات وړاندې کیږي. (11: 49).

پمفلېټ مختلف معلومات نه خپروي، بلکې د یوې پېښـې (مساءلې) په هکله مکمل ضروري تفصیل خپروي، چې د هدف وړ خلك په دغه مساله له مکمل پوه شي. (یوه

ښه بېلګه يې د کانکور هغه کتابچې دي چې زده کوونکي ته د لارښوونې په منظور ورکول کيږي)، يوه ښه بېلګه يې بللی شو. همدارنګه هغه کتابچې چې مختلفې طبي کمپنۍ يې د خپلو درملو د پېژندګلوۍ او د شـــهرت لپاره ډاکټرانو ته ورکوي د پمفلېټ ښې نمونې دي. د مخونو شمېر يې د کتاب په نسبت ډېر کم وي، عموماً 8، 4 يا 16 صفحې وي، چې فقط د موضوع د پېژندګلوۍ (تعارف) لپاره خپريږي د پمفلېټ په وســيله ډله ييز ارتباط نه نيول کيږي، مګر هم بيا د ځانګړيو ټولنو لپاره يو ځانګړې ارتباطي وسيله ده. (7: 20).

د يادولو وړ ده چې دا پمفلېټ له هغه پمفلېټ سره چې په ادبي تبليغي ژانر کې به په تير وخت کې تدريس کيده مکمل توپير لري، هغه يو تبليغي، ادبي ژانر دی، چې په ژورناليزم کې ځانګړی ارزښت لري ولې په دې پيړۍ کې يې ارزښت له لاسه ورکړی . او لاندې ځانګړتياوې لري. (16: 40).

(1) پمفلېټ د ارتباط اغېزمنه او ارزانه وســيله ده، چې د ځانګړو ډلو تر منځ د موضوع په تړاو مهم او په زړه پورې معلومات او پيژنګلوي کوي.

(2) وخت او روپۍ سپموي، په کم وخت کې مصرف پرې راځي، ډېر شمېر چاپيږي، د هدف وړ خلکو ته وېشل کيږي.

(3) عموماً يې تعليمي، طبي، مذهبي، اداري او ځينې ډلې يې د خپل منشـــور، تبليغاتي مواد د پمفلېټ په بڼه چاپوي او د خپلو اساسي اهدافو لپاره يې کاروي.

(4)دموضوع لپاره د پوهېدو او د کمپنۍ د شهرت لپاره د اعلان بڼه لري.

لنډه دا چې پمفلېټ د ډله ييز ارتباط لويه وسيله نه ده، مګر بيا هم د ځانړي ډلې لپاره په ارتباط کې مهم رول لري، چې بايد ســترګې ورڅخه پټې نه شي. همدا رنګه هغه پاڼې (پوســټرې) چې په دېوالونو باندې د مختلفومعلوماتولپاره خپريږي، په ارتباط کې اهم رول ادا کوي. لکه د پوهنتونونو، کورســونو او مکتبونو اعلانونه او پاڼې د کانديدانو عکسونه، لوحې چې په دېوالونو او لارو کې يې د خلکو لپاره سرېښ

کړي او لیکلې وي، د فوري معلوماتو یا د خپل حق د غوښتلو لپاره د بل چا خلاف د تبلیغـاتو د خپرولو او د خپـل هـدف تـه لاس تـه راوړلو لپـاره خپریږي او عموماً پـه کـاغـذونو، تختو او دېوالونو بـانـدې لیکـل کیږي، چې پـه ورځني ژونـد کې یې موږ مختلف مثـالونـه وینو د خوســت بـه مختلفو عامه ځایونو کې په دیوالونو و تختو ، لوحو او نورو ځایونو کې یې لیدلی شی.

## د اړیکو برقي (الېکترونیکي) وسیلې (Electrical Media):

کله چې د اړیکو په ډګر کې د برقي وسیلو نه کار اخلو، نو ضرور او بې له مبالغې به مو د راډیو، تلویزیون او نوي عصرـي وسـیلې (انټرنیټ) نومونه ذهن ته راځي. ځکه دغو دریو واړو وســیلو د انســاني ژوند اړیکې دومره ځواکمنې ، پراخې ، او تیزې کړې، چې هیڅ تصــور یې مخکې نـه کیـده ، دې وســیلو سره له دې پرمختګ یې انســاني ټولنې ته په هر بخه کې ورکړ ، د ټولنو دودونو ، سـیاسـتونو ، مانســان یې ذهبونو او کلتورونـه یې لـه لویو چلنجونو سره مخـا مخ کړل ، د دې پـه ځـای چې انســان ترې یواځې ګټـه واخلي په مختلفو برخو کې د خپلې جوړې کړې وســیلې ښـکار وګرځید. ددې وسـیلو په برکت انسـان کولی شي چې په څو ثانیو کې د نړۍ له ګوټ، ګوټ څخه د مختلفو پېښـو په هکله معلومات واخلي، د پېښې تصویرونه، د خلکو ویناوې، انځورونه،عملي صـحنې یې وګوري ، غوښتنې واوري، په اهدافو یې پوه شي، په غم اودرد کې ورسره شریك شي.

لنډه داچې ددې وســایلو ارزښــت او اغېز دومره زیات دی چې په خوله یې بیانول هېڅ امکـان نـه لري او د نړۍ پـه هېڅ کونج کې څوك ورڅخه بې اغېزه نه شي پاتې کېدلی، د نړۍ د انســانانو تر منځ یې ټول سرحدونه له منځه یوړل ، او ګټّ به یې هغه چاته رسیږي چې همدا وسیلې په لاس کې ولري ،ددې لپاره چې د موضوع تل ته ښـه داخل شـو، نو هر یو(رادیو،TV،انټرنیټ او د دوی نور مهم مرستیال مواد په لنډ ډول بیانوو.

## راډیو

راډیو د ډله ییز ارتباط یوه مؤثر، تیزه او باارزښته وسیله ده، چې په یووېشتمه پېړۍ کې د اړیکو، تبلیغ او معلوماتو په ډګر کې یوه ارزانه او با ارزښته وسیله بلل کیږي، چې هېڅ ســاری نه لري. راډیو د  هوا په څپو کې د وخت او زمان مطابق د نړۍ په هر کونج کې ځان خپلو اورېدونکو ته رسـولی شي. د فاصلې مشکل یې د تل لپاره له منځه یووړ، په ډېره پسته ژبه معلوماتي، ذهني، تفریحي،امتحاني،ډراماتیکي انتقادي، ادبي تکنالوژیکي، سـیاسي، سـاینسيـ او طبي معلومات وړاندې کوي، د معلوماتو ا اطلاعـاتولـه وړاندې کولو سره خپل حکم په ټوله نړۍ چلوي، هېڅ داســـې وګړی او یاهېواد به پیدا نه شي، چې د راډیو له اغېز او تاثیر لاندې نه وي راغلی.

رادیو د تیلیفون یو پر مخ تللی شـــکل دی، کله چې لومړی ځل تاري تلیفون منځ ته راغی، د ارتبـاط په وخت کې به یې چې کله تار وشـــلیده، نو ارتباط به له خنډ سره مخامخ شـو. ددې مشـکل د له منځه وړلو لپاره ساینس پوهانو کوشش پیل کړ، چې بـالاخره مارکوني په 1885 کال کې داســـې اله جوړه کړه، چې له تار پرته یې ارتباط ټینګولی شـو او نومخ یې پرې (راډیو) کېښـود د تجارتي اهدافو لپاره یې استعمالوله او د بحري بېړیو تر منځ بـه یې ارتبـاط سره نیوه او خپـل پیغام به یې له یوې بېړۍ څخه بلې بېړۍ ته رساوه. (14: 126،  127).

په راډیو کې لومړی اصـــولي باقاعده پروګرام په 1922م کال کې پیل شـــوه. په پیل کې یې د کار ساحه لنډه وه فقط خبرونه او پیغامونه به یې خپرول. (15: 124، 125).

په همدې کال کې په برطانیه کې د برټش براډ کاســـټنګ کمپنۍ رادیویي خپرونې پیل کړی، چې ښـــاریانو به تجارتي او تفریحي خپرونې اورېدې،  او معلومات به یې خپرول، د BBC لـه خپرنوڅـه برطـانوي حکومت خطر احســـاس کړ او هغه یې په 1924 م کې بندې کړې.

ددې پر ځای یې په 1927م کال کې د برټش براډ کاســټنګ کارپوریشـــن په نوم په کار پیل وکړ، چې په پراخه پیمانه یې داخلي او خارجي خپرونې لرلې، دغې ادارې د نړۍ نور قومونه په حکمت او تېزۍ سره انحصار، د ښو خپرونو په وسیله یې د خلکو زړونه تسخیر اعتبار یې لوړ کړ، چې تر اوسه یې خلك د باور وړ وسیله بولي. BBC ته د نړۍ د رادیوګانو مور وايي، حال دا چې د برطانیې او نورې غربي نړۍ د اهدافو د لاسته راوړلو او تبلیغاتو یوه لویه وسیله ده.

د ایکو په ډګر کې ټولې ډله ییزې رســـنۍ د ارزښـــت وړ دي، چې هره یوه یې ځان ځان ته ښـــېګړې لري، ددې لپاره چې موضـوع ښــه روښــانه اوځلانده شي، د رادیو ځانګړنې او ارزښت په لنډ ډول بیانوو.

## د رادیو امتیازي ځانګړتیاوې

✱ داطلاعاتواو معلوماتو دخپرولو چټکه وسـیله ده، د نړۍ په هره برخه چې پېښه وشي رادیوګانې یې په څو دقیقو کې خپروي.

✱ په ټولنه کې مختلف معذور خلك ژوند کوي، له رادیو څخه ړوند، ګوډ، بعضـــې نور معذور خلك هم ګټه اخیستلی شي.

✱ د بې سواده ټولنې لپاره د معلوماتو، اطلاعاتو، ښوونې او ارتباط بهتره وسیله ده.

✱ کلـه کلـه رادیوګـانې د هېواد او نړۍ د نوروخبرو منـابعو لپـاره پـه زړه پورې سرچینه وي.

✱ د پوښښ کچه او چتر یې د نورو رسنیو په نسبت ډېر، اسانه او کم مصرف دی.

✱ پـه بې ســـواده ټولنـه کې پـه زړه پورې اغېز لري او اورېـدونکو کې د یووالي او ګډون احساس راپاروي.

✱ د اورېدونکو (ګټه اخېستونکو) شمېر یې د نورو وسیلو په نسبت ډېر زیات دی.

✱ هر چېرې او هر ځـای کې اورېـدل کیږي، لـه اورېدو سره یې بل کار هم ســـړی کولی شي.

✱ اوربېدونكي مختلف شيان له راديو څخه اوربېدلی شي.
✱ په هر ډول حالاتو كې د ساړه جنگ كامیابه وسیله ده، چې دښمن یې هېڅكله مخنیوی نـه شي كولی. ځكـه خو دنړۍ دمهمو هېوادونو راديوگـانې په مختلفو ژبو خپرونې كوي، د روسي راديو پـه 80 بهرنیو ژبو خپرونې كوي. بي بي سي پـه څـه د پاسه 40 ژبو په اوونۍ كې 700 ساعته خپرونې لري، همدا رنگه چین، امریكا او نور پر مخ تللي هېوادونه د خپلواهدافو د لاس ته راوړلو لپاره ځانگړې راديوگانې لري او مختلف پروپاگند او تبلیغات كوي، چې خپل اساسي مرام ته ورسیږي، نو ویلی شو چې راديو د ساړه جنگ ډېره موثره بهتره وسیله ده ، د همدې موخې لپاره د ناټو او نورو امریكایي ځواكونو ، افغانســـتان ته له راتگ سره په هر ولایت كې په لســـگونو راديو گـانې تـاســـی كړې ، پیغـامونه او پروگرامونه به دوی وركول ، او هم به یې د خپرولو لپاره پیســـې وركولې . په نړۍ كې فعلا د ( ) شـــاو خوا راديوگانې شتون لري

### تلویزیون (Television):

تلویزیون د دوو مختلفو ژبو د الفـاظو مجموعـه ده، (Tele) یوناني لفظ دی، چې د (لرې) او ویژن (Vision) لاتیني لفظ دی، چې د (لیـدلو) مانا وركوي، كله چې دواړه سره یو ځای شي، نو له (لرې څخه د لیدو) مانا وركوي. (11: 238، 239).
تلویزیون د انسـاني هڅو او منډو په نتیجه كې داسـې وسیله ده، چې له اواز سره د پېښې مهم تصویرونه ویدو گانې هم خپرولی او انتقالولی شي.
پـه هكلـه یې (محمـد یوســـف (2006) لیكي: د تلویزیون پـه جوړښـــت كې د نړۍ مختلفو پوهانو خپل ځانونه ســـتړي كړي، شـــپې ورځې یې تېرې كړې او بالاخره په 1936م كـال كې د كامیابو تجربو په كولو سره تلویزیون منځ ته راغی او په ارتباطي نړۍ كې یې یو انقلاب منځ ته راوست.

د لومړي ځـل لپـاره جـارج کـاتد امریکايي په 1781م کال کې د تلویزیون د جوړېدو طرحـه وړانـدې کړه، ســاویر امریکـايي او موریتس لیـالین پـه 1880م کـال کې د تلویزیون د جوړولو په فکر کې شـول. دې پوهانو د سلینوم له عنصر څخه، چې برق په نور بدلوي کار واخېســت، الماني بلنیکپیو د پورتني عنصرـڅخه په اسـتفادې په 1884م کال کې یو تلویزیون جوړ کړ، خو ډېرې نیمګړتیاوې یې درلودې، ددې هڅو پـه نتیجـه کې پـه 1897م کـال کې یوه المـاني عـالم چې (براون) نومېده د کاتد وړانګو نل کشف کړ.

کله چې لومړی ځل د تلویزیون په جوړښت کې د Routing Desk هېنداري لرونکو لوحو څخه کار واخېستل شو، نو کیفیت یې خراب و. ددې مشکل د حل لپاره فزيك پوهانو نورې هڅې پیل کړې. څرنګه چې د رادیو په اختراع کې مارکوني او الکسندر پوپوف د خالي تیوبونو په وســیله له هواڅخه Ample Fire Vacum نقویه لرونکي وســیلې پـه ترانســمیترونو د تلویزیون په اخذو او په بې ســیم کې په چټکۍ سره پرمختګ وکړ او د الېکترونیکي تلویزیون د جوړېدو سـستم ته یې لار هواره کړه. په هغه وخت کې اساسي مشکل د تلویزیون طرحه، ډیزاین او کېمرې د څراغونو آخذې (د اواز اوتصویر بېرته اخېستونکې آله) او کنسکوپ (Kinescope) و، چې د تلویزیون په داخل کې برقي څپې او تصویرونه د لیدو وړ ګرځوي.

د تصــویري تیپوپ د جوړېدو مفکوره په 1911م کال کې یو امریکایي عالم وړاندې کړه، چې په المان، بریتانیا، جرمني او پخواني شــوروي اتحاد کې نمایش ته وړاندې شو.

بالاخره د تلویزیون کېمرې څراغونه جوړ شـول، مګر چارج یې نه سـاته. د 1920 او 1930م کلونو پـه منځ کې مختلفې طرحې او نظریې وړانـدې شــوې، خو د عالمانو قناعت یې حاصل نه کړ.

د لومړي ځل لپاره په 1928م کال کې په امریکا کې د تصویري تیوب طرحه وړاندې شــوه. دا ډول تیوبونـه پـه 1920م کـال پـه هنګري، پـه 1929م کـال کې کاناډا او 1930م کال کې په شوروي اتحاد کې جوړ شول.

بالاخره دا ډول تیوب (Picture Tub) په 1931م کال کې په پخواني شــوروي اتحاد کې، چې عملاً يې کار کاوه، وړاندې شو. همدا رنګه د امریکا R.C.A شرکت داسې تیوب تیـار کړ، چې مختلف څراغونـه يې هم درلودل او د وخـت لـه مهمو ضروري کشـــفیاتو څخه ګڼل کېدل د یو ثابت تصـــویر انتقال له لرې ځایونوڅخه د 19 مې پېړۍ له نیمايي څخه پیل شوی دی.

کـاذلي ایتـالوي څوان 1815- 1891 پـه 1856م کـال کې د پـانتلیګراف ( Pan Telegraph) په نوم یوه دستګاه، چې لنډ خطي پیغامونه به يې د تیلیګراف له لارې د فرانسې د پوست په واسطه لېږل کار کار اخېسته.

په همدې دوران کې عکس د تلیلګرافي تیلیفون له لارې د ډېرو څېړنو په نتیجه کې د (ارتوکورن) الماني له خوا 1870م کال شروع او تر 1945م کال پورې تشکیل شو او ويې کولی شـول، چې په 1907م کال کې د برلېن او فرانسـې تر منځ تصویري اړیکې منځ ته راوړي.

پورتنی کار (واوژون) فرانسـوي د 1876- 1963 کالو تر منځ تکمیل کړ، له دې څخه وروسته مختلفو پوهانو د تلویزیون د تکمیل لپاره کار کړی دی او هغه تلویزیون چې نن د هر چا د کور یو غړی ګرځېدلی دی، جوړ شــوی، چې فقط په جلا جلا ډول يې نومونه ذکر کوو.

پاول نیپکو (Paul Nipkow) الماني په 1884م کې ډېر د نبوغ نه ډك كار کړی چې له کوچنیو سـوریو څخه يې یوه صـفحه جوړه کړه. همدا رنګه کمبل په 1908م کال کې او یوریس او سـلینګ روسي پوهانو تر 1907- 1911م کلونو پورې کارتوري (هغه

ځراغونه چې نورې شعاوې تصوير په اخېستو او لېږدولو کار کاريږي، ځراغونه جوړ کړي دي.
همـدا رنګه ولاديمير زواکين په 1927م کې ايکونو ســکوپ جوړ کړ، چې د عکاسي برقي کېمرې پرې مجهزې دي، لنـډه دا چې تلويزيوني تيوبونـه ددې باعث شـــول، چې د نننۍ نړۍ د عصرــي (Digital) تلويزيون د منځ ته راتګ سـبب ګرځي. او د نړۍ د هر کور غړی جوړ شي.
(ســيف الرحمن (2009) وايي: د يوې سروې مطابق نن په نړۍ کې له 4 اربه (څلور زره مېلونـه) څخـه ډېر خلـك د تلويزيون لـه وينـاوو او پروګرامونو څخـه ګټـه اخلي.
(محمد يوسف ميرزا (2006) زياتوي، چې د نړۍ 84 فيصده خلك له تلويزيون څخه استفاده کوي او د چينايانو يو متل دی، چې
(يو تصــوير له زرو کلماتو څخه بهتر دی) د پوهانو دغه په زړه پورې تحفه په نننۍ عصري او ارتباطي نړۍ کې نن ټول وګړي پېژني او هر څوك ورڅخه ګټه اخلي.
پـه نړۍ کې لومړي ځل تلويزيوني خپرونې په برطانيه کې شـــوې دي، BBC لومړي ځل په 1936م کال کې د لندن په ښـــار کې تلويزيوني خپرونې پيل کړې او ددوهم نړيوال جنـګ لـه کبله دا خپرونې بندې او بيا په 1947م کال کې د دوهم ځل لپاره پيل شـوې. په امريکا کې هم د تلويزيون خپرونې په 1940م کال کې پيل شوې او د 1941م کـال د جولايي په مياشـــت کې لومړی پروګرام خپور کړ او له دوهم نړيوال جنګ څخه وروسته دنړۍ په اکثرو هېوادونو کې تلويزيوني خپرونې پيل شوې.
د تلويزيون اغېز په ټولنه کې: که چېرته د چينايانو په وينا يو تصـــوير له زرو الفاظو ځواکمن وي، نو څه فکر کوئ چې يو متحرك تصوير به څومره طاقت ولري؟ حتماً به يې اغېز زيات وي، ځکه د يوې پېښـــې د قربانيانو غږ اورېدل او بيا يې د صـــحنې تصـوير ليدل بالکل زيات اغېز لري. دا چې د اطلاعاتو، معلوماتو او تفريح يوه بهتره وسيله ده نو ځکه د هر کور د يو غړي په توګه ورته کتل کيږي. د نننيو دغو عصري

وسـایلو له برکته ټوله نړۍ د یو وړوکي کلي په شـان سره رانږدې شـوې ده. په څو ثانیو کې سـړی کولی شي د نړۍ له مختلفو کونجونو څخه ځان خبر کړي، انسـاني عقل حیران دی، چې ددې معلوماتي انقلاب د وسـایلو د منفي اغېزو له کبله څنګه خپل فرهنګ (کلتور) ثابت وساتي، چې د نورو له اغېز لاندې رانه شي.

د نړۍ د ارتبـاطـاتو عـالم (میري ون 1977) په خپل اثر (The Plug in Drug) کې وایي:

(Television can be Compared to anacrotic drug) (14: 175).

همدا رنګه (1982 Defleur and Ball Rokeach) لیکي:

چې د تلویزیون خپرونې په انساني ذهن باندې د جادویي مرمیو (Magical Bullet) په شان اغېز کوي. (15: 63).

(کېپټن لیاقت علي ملك (2008) لیکي، چې دیوې څېړنې مطابق د انســان په ذهن کې د اورېدو په وسـیله 11 فیصـده معلومات ځای نیسيـ او د لیدلو په وسـیله 83 فیصـــده معلومات د انســـان په ذهن کې جمع کیږي او که چېرته اورېدل او لیدل سره جوړه شي، نو بیا خو یې ارزښـت ضرور زیات وي، نو بناء تلویزیون نسبت رادیو ته ډېر مؤثر دی.

(ناصر حفیظ او ابو واجد شـیخ 2007) لیکي: تلویزیون په ډله ییزو رسنیو کې په زړه پورې اغېزناکه وسـیله ده چې ساری نه یې لیدل کیږي. پروګرامونه یې په سلو کې اتیا تفریحي او په سلو کې شل معلوماتي دي.

سره لـه دې چې تلویزیون ذکر شـــوی اغېز او ځـانګړتیاوې لري، مګر لاندې په زړه پورې ارزښـــت هم لري، چې د انســانانو د ژوند، علم، پوهې، پرمختګ، سـیاسـت، کلتور او ســـاتېري پـه ډګر کې پـه زړه پورې رول لري او د اطلاعـاتو او معلوماتو په چوپړ کې په نه هېرېدونکي خدمت لګیا دی شـــپه او ورځ دوام لري، چې مثبت او منفي اثرات لري.

راځئ، چې دلته د حضرت محمدصلی الله علیه وسلم هغه حدیث ته چې (1400) کاله مخکې یې ویلی دی، ځیر شو چې نننۍ عصري وسیلې (تلویزیون، کمپیوټر، انټرنیټ...) یې د ثبوت ښې بېلګې دي په داسې حال کې چې د مکې د وخت کفارو د پیغمبر(ص) په قول (حدیث) پورې خندل او ملنډې یې پرې وهلې.

په عبدالله ابن عباس څخه روایت دی، چې پیغمبر(ص) فرمایلي دي: (حجر الاسود له جنت څخه رالېږل شوې، چې رنګ یې له شیدو څخه سپین وو د حضرت ادم د اولادې د تقصیراتو او ګناهونو له کبله به توریږي.)

ابن عباس له پیغمبر(ص) څخه حدیث نقلوي او وایي: چې الله ج د قیامت پر ورځ دغې تیږې ته شونډې او ژبه ورکوي چې شاهدي وایي د هغو خلکو لپاره چاچې دا تیږه مسحه کړې وي.) ابن ماجه (جلد 2، 281) مخ.

حضرت محمد(ص) د حجرالاسود په هکله حاجیانو ته توصیه کوله او ورته به یې چې کله حج کوئ نو د حجرالاسود د تیږې په سوري کې سر دننه کوئ او که امکان نه لري؛ نو لاس پرې ږدئ ، ځکه چې دا تیږه له جنته راغلې او د قیامت پر ورځ به پر تاسو شاهدي وایي چې دې سړي حج کړی دی. د مکې کفارو به په رسوالله(ص) پورې خندل حال دا چې د پیغمبر(ص) په هکله الله ج ګواهي ورکوي او وایي: چې (محمد(ص) له ځانه خبر نه کوي مګر خبرې کوي هغه چې وحي ورته شوې وي) د مکې کفارو به ویل، چې د حضرت محمد(ص) داخبرې له عقل څخه لرې او د منلو وړنه دي؛ څنګه تیږه کله کولی شي چې د یو چا تصویر له ځانه سره وساتي او د قیامت په ورځ شاهداي ورکړي، چې دغه سړی مسلمان دی او حج یې کړی، زه پرې شاهدي وایم؟!.

نن مونږ اوتاسو شاهدان یو چې د پیغمبر(ص) پورتني احادیث د عصري او تکنالوژیکي وسایلو په منځ ته راتګ سره ثبوتیږي، ځکه نن کمپیوټر چې له پلاستیك او اوسپنې څخه یو ضعیف انسان جوړ کړی اواز ثبت کولی، تصویر ساتلی او همدا

رنگه  د انټرنیټ په وسـیله بېلا، بېل تصاویر، معلومات او اطلاعات له یو ځای څخه بل ځای انتقالولی شي؛ نو بیا به څنګه د دواړو جهانو د سردار خبره دروغ وي؟

نو دې پایلې ته رسـیږو، چې ننني عصرـي وسـایل د اسـلام د سـتر لاربشـود حضرـت محمدصــلی الله علیه وســلم د اقوالو د ثبوت نمونې دي، چې باید ومنل شي؛ ځکه هغه تیږه له جنته راغلې او دا وسـیلا انسان  جوړ کړي دي، څنګه د دواړو جهانو د سردار خبره دروغ وي؟

ځنګه چې انســان داســې وســایل جوړلی شي څه فکر کوئ، چې هغه تیږه خدای له جنته رالېږلې، نه شي کولی چې نوموړی عمل سرته ورسوي؟

پرته له شـك دا كار كولی شي ځكه داسـلام دین یو کامل دین دی تر ورځ د قیامته پورې ټول هغه اړین شـیان چې انســان ورته ضرورت لري د خدای په کتاب قران او نبوي احـادیثو کې ذکر شــوي داچې مو ږ ترې غـافلـه یو زموږ نیمګړتیـاده ،یو پـه پوهنتون کې د ژورنالیزم او اسلام مسـله مزرح شوه ، یو استاد چې له مخې قران نه شو تلاوت کولی او نه یې د نبوي احادیثو متن لوستی شوی سمدستي یې وویل چې : اسلام یک دین کهنه است و ژورنالیزم یک چیز نو .

دا جاهل په دې نه پوهیده چې په اسلام کې لومړی امر  د ولوله راغلی ، او داوسني ټولې اړتیا خدای موږ ته رالیږلې دي ، چې نه پوهیږو دا زموږ ه کمزوري او نیمګړتیا ده .

**د تلویزیون مثبتې ګټې:**

دا چې د دې نړۍ هره ډله ییزه ارتباطي وسیله ځان ته ځانګتیاوې لري  نو  تلویزیون هم داســې وســیله ده چې هر کور کې عضــویت لري ، په ځینې هېوادونو کې خو د میاشــتې په دوران کې ټکس ورکوي ، نو که ووایو چې تلوزیزیون دهر کورغړی دی مبالغه به نه وي ، د تلویزیون له برکته موږ د ټولې نړۍ مشهور لوبغاړي داسې پیژنو لکه د خپل کور غړي .

۱: تلویزیون یوه نوې او جادوګره رسنۍ ده چې د پوهانو په وینا ۸۰ فیصده معلومات یې د انسان په ذهن کې ثبتیږي .
۲: دتلویزیون هر انځور په انساني ذهن کې ځانګړی کور (ځای) لري .
۳: تلویزیون د انساني ټولنې د هر کور یو مهم او نه بلېدونکی غړی دی .
۴: په تلویزون کې له غږ سره انځور او چاپیریال هم لیدل کیږي .
۵: انساني فکر له تلویزوني انځور او رنګ څخه متاثر کیږي .
٦: د حکومت دضعف ، دمسلکي کسانو د نه هڅو له کبله په ځینو ټولنو کې ټولنې رسنۍ په ځانګړي ډول تلویزون بد نام دی چې مسولیت یې هم زما په نظر د حکومتي چارواکو او د همغو رسنیو دمسولینو دی چې ملي ، مذهبي او کلتوري مسولیت نه درک کوي .
څرنګه چې انساني ټولنه ورځ تربلې ډیریږي ، او دنړۍ په هېوادونو کې دمختلفو مذهبونو، نژادونو ،او سیاستونو خلک اوسي نو د دې لپاره چې انسانان منظم ژوند وکړی شي ، یو له بل سره هکار ،همغږي او همدرده وي نو لازم دی یو بل سره وزغمي ، یو دبل په ژوند ، حالاتو ، دیني مذهبي او کلتوري اړیکو پوهه شي نو مجبور دي چې د نړۍ د هر هیواد قوانینو او اصولو ته غاړه کیږدي څو په منځ کې یو نظام برقرار شي نو د ښه نظام لپاره حکومت ته ضرورت دی ، او د نظام په راس کې باید داسې خلك وي، چې هغه په رښتیا د ټولنې خدمتګار وي، د ټولنې عقیدوي، سیاسي کلتوري پولې وساتي، ځکه عقیده، کلتور او په ټولنه کې د خلکو خوښ نظام (حکومت) د ډېرو قربانیو، وینو تویولو او پېړیو، پیړیو کې منځ ته راځي.
د پرمختګ لپاره یې ډېر زیار اوکوښښ په کار دی، چې ټولنه او حکومت جوړه اوږه په اوږه خپل ملي، عقیدوي، کلتوري او سیاسي اهداف لاس ته راوړي.
دذکرشویو موخو د لاس ته راوړلو لپاره رسنۍ لومړۍ درجه ارزښت لري. نو ځکه ضرور ده، چې تلویزیون، رادیو....نور د ټولنې د پرمختګ لپاره چوپړته ملا وتړي او

ددې وسـايلو پـه راس کې بـايد داسـې خلك مقرر وي، چې خپلې عقيدې، کلتور، خاورې او ملت ته وفادار او باديانته وي، چې وکولی شي خپل مقصـد ته ورسـيږي، کله چې د رسـنيو مشران په ذکر شـويو صـفاتو ملبس وي، نو له خپلې رسنۍ څخه بايد د قوم د پرمختگ لپاره لاندې موخې په نظر کې ونيسي ـ څو په رښـتيني ډول ټولنې چوپړ وکړی شي .

**ښوونه او روزنه:**

څرنگـه چې تلويزيون نن د هر کور د غړي حيثيـت لري، نو بـايـد داسـې تعليمي پروگرامونه خپاره کړي، چې د هر کور ماشوم، ځوان او سپين ږيری نارينه او ښځينه ورڅخه گټه پورته کړي. ځکه يوازې ښـوونه او رزونه ده، چې په سـبب يې انسان په فضـاء کې تحقيقات کوي، پراخه نړۍ يې د کور په شان گرځولې، ځمکه يې تسخير کړه او اوس دا دی په فضـاء کې مصرـوف دی. په سپوږمۍ کې پلټنې سپړنې کوي او فضايي مرکز جوړوي.

او همدغه ښـوونه او روزنه ده، چې د نړۍ د يوې لويې وچې څخه په بله وچه کې د خپلو اهدافو لپاره يو د بل په جيب کې مرمۍ اوبالستيك توغندي ورغورځوي.

څرنگه چې زموږټولنه بې سواده ده، نو عموماً تلويزيون او راديو د داسې ټولنې لپاره د ښوونې او روزنې په ډگر کې ډېر مؤثر تماميږي نو بايد له دې وسيلې څخه عظمي مثبته گټه واخلو نه ناروا ، بې کلتوره او بد اخلاقه ډرامې او سريالونه .

**تازه اطلاعات او معلومات:**

تلويزيون دعصرـي نړۍ د اطلاعاتو او معلوماتو د لېږلو په زړه پورې عصرـي وسـيله ده، له اواز او معلوماتو سره سره د پېښـې او محيط په زړه پورې متحرك تصـوير هم انتقـالوي، چې اغېزې يې له لمر څخه روښـانه دي. د برتانيې د يوې سروې مطابق 90% خلك له تلويزيون څخه معلومات حاصلوي، نو بايد د رسنيو مسوولين د خپلې ټولنې لپاره داسې جاذب ضروري معلومات خپاره کړي چې خلکو ته حقايق روښانه

کړي او پـه حقيقي ډول د تولنې نماينده ګي وکړی شي 7 او هغه خپاره کړي چې د خلکو دردونه دوا کوي ، نه غمونه را سپړي . (154، 153).

**دمذهبي پروګرامونوخپرول:**

څرنګـه چې هره ټولنـه ځـانګړې عقيـده او کلتور لري، نو د عقيـدوې او کلتوري پروګرامونو خپرول د ټولنې د عقيدوي او کلتوري لارښوونې، پرمختګ لپاره تلويزيون په زړه پورې او نه هېرېدونکی رول ادا کوي، په دې وسـيله رسـنۍ کولی شي چې د ټولنې باور را خبل کړي ، ځکه چې دا د ټولنې حق او د رسـنۍ دمشرـ فريضـه ده، چې د خپلې ټولنې ديني ، عقيـدوي پرمختـګ او کلتور ، د سـاتنې لپـاره زړه راښکونکي کار وکړي ، مثبت پروګرامونه جوړ کړي، څو هغه بنسټيز مسوليت چې د ټولنې او خلکو په مقابل کې يې لري ادا کړي ، له همدې کبله هره ټولنه د خپلې عقيدې او کلتور په وسيله پېژندل کيږي.

**د عوامو نماينده ګي کول:**

څرنګه چې نن ورځ دملکونو او ملتونو تر منځ دفاصـلې مشـکل له منځه تللی، د تـلويزيون، راديو او انټرنيـت څپې لـه غرونو، بحرونو، ملکونو او لويو وچو څخـه تيريږي، نو رسـنۍ بايد داسـې نقش ادا کړي چې د نړۍ په هر ګوټ کې د خپل ملت اوحکومت حيثيت وساتي.

د هېواد او نړۍ د مختلفو پېښـو په هکله داسـې معلومات خپاره کړي، چې يقيناً دخپل ملت نماينده ګي وکړي او د مختلفو مسـايلو په هکله د ټولنې د ضـمير اواز پورته کړي، ځکه چې رسنۍ د ملت او حکومت تر منځ د پل حيثيت لري.

همدا رنګه د سـياسي مسـايلو او مشـکلاتو په هکله ټولنې ته داسـې لار وښـيي چې ټولنې ته د منلو او فايدې وړ وي څو ټولنه داسې لوري ته سوق کړي، چې خپلو ملي او معنوي لوړو مقاصدو ته ورسيږي.

**له وطن سره مينه:**

دعربو يو متل دی (حب الوطن من الايمان) له وطن سره مينه کول د ايمان يوه برخه ده. څرنګه چې زموږ ټولنه اسلامي ټولنه ده، نو له وطن سره محبت د ايمان نښه او علامه ده، په افغاني ټولنه کې وطن پالنه ، سرښندنه او د وطن ساتنه د شهامت او غيرت ، نښــه د ه داچې وطن پالنه په ټولنوکې يو اصـل دی نو رسـنۍ مجبوره دي چې د خپلې ټولنې ټول اساسات په خپله غيږ کې وپالي

ځکـه د همدغه وطن په غېږ کې لويېږو، مرو او همدغه مو زانګو او دخاپوړو ځای ده، نو بايد د خپل وطن او خاورې داسې په اخلاص او محبت خدمت وکړو، چې له نورې نړۍ سره يې سيال کړو. ځکه رسنۍ هغه ځواک دی چې هيڅ سرحد يې مخه نه شي نيولی ، نو لازمه ده چې خپلې خاورې اوټولنې لپاره داسـې ملي خپرونې ولري چې په فکري ، علمي ، شــعوري او اخلاقي لحاظ د ټولنې ټول قشرــونه له مختلفو ګړنګونو او فعاليتونو څخه وســاتني ، چې د تلويزيون رول په دې برخه کې مخکښ دی مســوولين يې بـايـد د خـاورې خـدمـت، پرمختـګ خپل فرض وګڼي، چې ټول هېوادوال په ارام ژوند وکړي، له بربادیو، جګړو او لانجو څخه مو وساتي.

ځکـه همغـه د وطن مينه او قرباني ده چې په لرغوني تاريخ کې مو په لکونو افغانان د دښــمنانو په مقابل کې قرباني کړي ، دا لړۍ تر نه هم دوام لري چې دښــمن مو نـه پـه مســجـدونو ، ښــارونو ، غرونو او نـه هم پـه کورونوکې پـه ارام پريږدي .

څو چې دا جهان ودان وي تل به دا افغانستان وي

دکابل دتخت نظر به هله مات شي چې لوګی ورته تهران او دا پنجاب شي .

**د اختلافونو او تعصب له منځه وړل:**

د اسلام په سپېڅلي دين کې اختلاف او تعصب يو ناروا عمل دی او دتل لپاره خلک ترې منعه شوي ، ولې زموږ تاريخي قسم خوړلی دښمن تل له همدې بدې وسيلې (

اختلاف او تعصب) څخه کار اخلي ، د قوم ، سمت ، ژبې ، نژاد ، گوند ، ډلو او ټپلو په نوم موسره بیلوي ، څو دوی خپلو ناولو موخو ته ورسیږي .

لو یخدای ټولو انسانانو ته فرمايي چې تاسو د خدای په رسۍ منگولې ولگوی او ډلې ډلې مه کیږي .

متاسفانه موږ د گوند جوړیدو ته خوښیږو چې له همغه ځای الله له موږ خفه او زموږ ټولې چارې له سره خربې وي .

د افغانستان ټولنه اکثریت بې سواده ده، په داسې ټولنه کې د دښمن تبلیغات ډېر موثر وي، په هېواد کې د مختلفو قومونو تر منځ اختلافاتو ته لمن وهل، سمتي او نژادي تعصبات راپیدا کول، دا ټول هغه څه دي چې د یو ملت د تباهۍ او بربادۍ سبب گرځي؛ نو بناً په تلویزیون کې مسوولین باید داسې پروگرامونه خپاره کړي چې په رښتیني توگه ملي وحدت منځ ته راوړي او د هېواد دښمنان لاس په سر شي، دا کار د تلویزیون او رادیو له لارې ډېر مؤثر تمامیږي او باید دوامداره تر سره شي؛ځکه چې زموږټول هیوادوال رادیو او یا تلویزیون گوري نو لازمه ده چې ډله ییزې رسنۍ هېواد وال وحدت او یووالي ته راوبولي، نه تعصب او اختلاف ته څومو له یوې دخدای حکم او له بلې خوا ملي ، ایماني او وجداني مسولیت رفعه کړی وي.

## له چارواکو سره محاسبه:

موږ مسلمانان په دې باور لرو چې د اخرت په ورځ به له موږ سره خدای حساب کتاب کوي ، ځکه هغه نعمتونه چې خدای موږ ته راکړي باید شکرانه یې اداکړی شي ، نو په دنیا کې هم هغه مسولین او چارواکي چې د ټولنې په راس کې قرار لري د تخطي په وخت کې وپښتل شي ، حساب کتاب ورسره وشي ، څو خلکو حق له پښو لاندې نه کړي ، گډوډي را منځ ته نه شي ، که له چارواکو سره محاسبه ونه شي نو بیا به دحامد کورزي لالا د حکومت په شان چور او تالان گډ وي او ډاکټر صاحب اشرف غني به یې په حساب او غلا پسې نه رسیږي ، نو رسنۍ مجبورې

دي چې د ځواک او واک په وخت کې له چار واکو سره د ادارو په تړاو حساب وکړي . څرنګه چې په اسلامي ټولنه کې چارواکي د ملت خدمتګاران دي، نو که چېرته چارواکي له خپل قدرت څخه غیر مشروع ګټه پورته کړي، رسنۍ مسوولیت لري، چې پوښتنې ترې وکړي او دده د سو استفادې جریان ټول ملت ته واوروي، چې بل چارواکي دې کار ته ملا ونه تړي، ځکه دا د بیت المال حق دی، نه د چارواکیو. په بیت المال کې دهېوادټول وګړي حق لري،بایدداسې چارواکي درسنیوله لارې ټول ملت ته وښودل شي،ګټه به یې دا وي،چې بیابل چارواکی داسې عمل نه ترسره کوي ، د ډاکټر صاحب اشرف غني اوسنی کار چې د زور واکانو په مقابل کې یې پیل کړی اصلا اکبر جهاد دی ، تل د دوام ولري ، ژوندی د وي آو د دوهم ځل لپاره هم همداسې د کار سرې غواړو .

## ټولنه هراړخیز پرمختګ ته رابلل:

هغه ټولنه چې اجتماعي پرمختګ یې کړی وي، په دې لار کې یې عالمانو، سیاست پوهانو او مشرانو ډېر هلې ځلې کړې وي، زحمتونه اوتکلیفونه یې ګاللي وي. ډله ییزې رسنۍ باید د خپل هېواد د پرمختګ لپاره د خپلو تېرو مشرانو، سیاست پوهانو او عالمانو په پلونو قدم کېږدي عملي درناوی یې وکړي خپله ټولنه، چارواکي او مشران د خپل هېواد اجتماعي، زراعتي او سیاسي پرمختګ لپاره چمتو کړي څو دنړۍ له نورو سیالانو سره سیال شي کنه له دې کارونه پاتې خلک د نورو ملتونو پښې پاکوي او یا یې هم تشنابونه مینځي . نو رسنیو ته لازم دی چې د هر اړخیز پرمختګ لپاره ټولنه چمتو کړي څو د هڅو ،منډو او زحمتونو په سیلاب کې لاهو او له نړیوالوسره همزله او همغږي شو . رسنس باید په دې هکله په زړه پورې ملي پروګرامونه جوړ کړي، چې خلك وهڅوي، د خپل هېواد، خاورې، ملت د ابادۍ، وحدت، خوشحالۍ او پرمختګ لپاره کار وکړي له حکومت سره همغږي شي ، ځکه

حکومت د ملت لپاره لکیا وي چې ارام ژوند ولري ، نو ملت ته لازم دی له خپل ملي حکومت سره همغږی او ملاتړ شي .

## دتلویزیون منفي اغېزې:

تلویزیون او نورې ډله ییزې ارتباطي وسیلې د چړې حیثیت لري، که چاړه په کور کې د غوښتې د پرېکولو، د پیازو او نورو سبزیجاتو، د ورزلو او د حیواناتو د حلالولو لپاره استعمالوي، نو ښه ګټور شی دی. او استعمال یې ضروري دی ځکه دا کارونه بې چړې مشکل دي او که چېرته په چاړه خپل اولاد، مېرمن، دکورنۍ غړي یا هېوادوال حلالوې، نو دا بد کار دی، ځکه چې حرام او د بل چا د حق ضایع کول دي، نو په ټولنه کې ډله ییز ارتباطي وسایل هم د چړې په حثیت لري، که مثبته ګټه ورڅخه واخلې؛ نو دکور او هېواد دابادۍ او پرمختګ سبب ګرځي او خدای مه کړه که منفي کار دې ترې واخست نو خپل اهل دې په خپله خراب کړ، بیا یې پایله ډېره خطرناکه ده. ډله ییز ارتباطي وسایل له مثبتو ګټو سره څه منفي نقاط هم لري، چې مسوولین باید ورته متوجه وي ځکه دا د والدینو مسولیت دی چې خپله کورنۍ او اهل له داسې حرکاتو وساتي چې ، خدای فرمایي چې : یاایهالذین امنوا قو ا انفسکم و اهلیکم نارا.

اې مسلمانانو تاسو خپل ځان او اهل (اولاد) د دوزخ له اور څخه وساتی . هیله ده چې له رسنیو څخه د خپلو اولادونو د سالمې تربې ، روزنې او ځیرکی لپاره کار واخلی ، خدای مه کړه نه د خرابي او بد احلاقي لپاره . او پام مو وي چې زموږ دښمن زموږ د ټولنې د ټولو نورمونو خلاف وصروف دي څو مو د فکري جګړې له لارې په اخلاقي ، علمي ، سیاسي او کلتوري ډول په بنسټیز ډول و ځپي .

**(ناصر حفیظ او ابو شیخ) (2007) لیکي:**

(محصلین او زده کوونکي د یو هېواد عظیمه سرمایه ده. حکومت والدین او درسنیو مسوولین باید دې سرمایې ته پام وکړي، د دوی لپاره داسې مضرـپروګرامونه، لکه

بد اخلاقه ډرامې، فلمونه، موسـيقي، چې د انسـاني ژوند دبربادۍ سـبب ګرځي خپاره نه کړي، خصـوصـاً د شپې په داسې وخت کې دوی په خپل اطاق يا کور کې وي. دا وخت د مطالعې دی نه د مضرو ډرامو، فلمونو او موسيقۍ د اورېدنې).
لوی خـدای هم مســلمانـان مـامور کړي چې ! خپـل ځان او کورنۍ د دوزخ له اوره وساتی)
ای زمونږ د هېواد چارواکو د رسنيو واکدارانو!
ايا تاسو خپلو پروګرامونو ته متوجه شوي ياستئ؟
خپلې اسـلامي عقيدې اوسـپېڅلې افغاني کلتوري پولې مو سـاتلې او که نړولي مو دي؟!
خپلو ځوانانو ته مو د خپلو عقيدوي او ملي اسـاسـاتو د ساتلو او که د له منځه وړلو لارې ښودلې دي؟
هيله ده چې د خپلو دغو باارزښـته وسيلو له لارې د خپل وران او ويجاړ وطن، خپلې اسلامي عقيدې او افغاني کلتور پولې وساتئ.

## د خپل کلتور، عقيدې خلاف پروګرامونو نه خپرول:

کلتور يوه پيچلې مجموعـه ده چې معلومـات، معتقـدات، هنرونه، اخلاق، قوانين، آداب، دودونه ، تمايلات، قابليتونه او کسـب کړي عادتونه په کې دي چې انســان يې د ټولنيز عضويت په حال کې ترلاسه کوي .
کلتور دخلکو عـادات يا طريقې دي ، د هر شي نښــه او نما ده ، چې يوې ځانګړې پـالنې ته ضرورت لري ، په مطالعه سره ســړی ښــه کيږي او دکلتور خاوند کيږي يعنې دعلم او هنر استعداد لري .
د کلتور عناصر ( Element of the culture)
هغه عناصر کوم دی چې د کلتور او کلتور پوهنې بنسټ جوړوي ؟

دغه خبره به مو اورېدلي وي چې انسان پلټونکی خلق شوی دی نو د خپلې پوهې لپاره تل په لټه کې وي چې اړيکې جوړې کړي، خپل افکار لوړ کړي او د ژوند کولو هغه اساسي مهارتونو سره ځان بلد کړي چې دغه کارونه د ژبې پر مټ له يو لړ ارزښتونو، دين او د خلکو عقايدو او قواعدو څخه زده کيدلی شي.

مـعنوي عناصر(Immaterial Element)

ټول هغه شيان چې د انسانانو له علمي او ذهني پلوه دشخصيت بڼاينې سبب کېږي، په دې معنا چې دغو شيانو په پېژندلو سره موږ روحا د ارام احساس کولای شو، خپلې ستونزو ته حل پرې پيداکولای شو او په ټولنه کې د نورو خلکو لپاره د ژوند اړينې چارې پرې برابرولی شو دا د ذهني کلتور ښکارندوی هم ده لکه اخلاق، هنر، ژوند، علم،افکار، ژبه، دين،عقيده، قواعد، فکر، نښې، منطق او... چې يو شمير به يې په لاندې ډول واضح کړو.

۱ــ ژبه (Language): په انساني ژوند کې ژبه هغه مهم فکتور دی چې له لومړيو وختونو څخه انسان د پوهولو راپوهولو لپاره استعمال کړې ده، هغوی خپل افکار يو بل ته پرې لېږدول؛ د انسانانو مهم توپير له ځارويو سره په ژبه کې ده او خپلې هر ډول غوښتنې د ژبې له مخې څرګندولی شي.

ژبه د کلمو او جملو يوه ټولګه ده چې يو څوک بل چاته خپل فکر پرې بيانوي، په دې کې نښې او اشارې هم شاملې دي؛ژبپوهان ژبه په ټولنه کې د خلکو پوهولو را پوهولو لپاره کاروي او په دې توګه ژبه د انسانانو ترمنځ يوه بهترينه وسيله ده.

۲ــ دين (Religion): اصلا دين په لغت کې د جزا او بدل په معنا دی، مطلب ترې د خدای له لوري رالېږل شوو احکامو تابعداري ده ، دين د انسان ټولې انګېرنې سپېڅلې کوي، دين د ژبې له لارې نه يواځې چې کلتور مو غښتلی کوي بلکه لا پرمختګ ورکوي.

اسلام دین  د عربي فرهنگ او د عیسوي دین د یهودي فرهنګ ته، په نړۍ کې پراختیا ورکوي،
زموږ ټولنه هم یوه سنتي ټولنه ده چې ګڼ شمیر خلک یې  د اسلام مبارک دین پیرو دي او شاوخوا، یو په سلو کې یې د نورو ادیانو پیروي کوي ، د اسلام مبارک دین خپله یو ثقافت لري چې د هغې منل پر موږ اجباري دي ځکه د دین او مذهب لاره خدای(ج) د نړۍ اړتیاوو د پوره کولو لپاره الهي ارشادات رالیږلي دي.
که د تاریخ زرینې کرښې را وڅېړل شي، له اسلامه هم  وړاندې، په افغاني ټولنه کې د یو ښه کلتور اجزاو ته پاملرنه کېده. لکه  میلمه پالنه، په ژمنه وفا، ترحم، شفقت او احترام  چې دا په هغه اریایي ټولنو کې هم موجود وو؛ خلکو ورته جدي توجه ددې لپاره کوله چې ښکلی  ژوند وکړي، همدارنګه تاریخ د اسلام ظهور په اړوند لیکلي چې له مدنیتونو او بیلابیلو ټولنو سره ورسته له ډیر کشمکشونو او اړو دوړو څخه هغوی اسلا مبارک دین منلی دی اما افغاني ټولنه  پرته له کوم کشمکش څخه د اسلام دین منلی دی.
۳ــ **قواعد(Methods):** د ټولنپوهنې علم له مخې قواعد هغه مقرارات او اصول دي چې ټولنه د هغې له طریقه د خپلو غړو کړنو ته سمون ورکوي، دا چې انسان له اصله خپلواک زیږیدلی دی مګر  په ټولنه کې له ځینو محدودیتونو سره مخ کیږي چې هغه موږ  یو لړ قواعدو په نوم پیژنو او د خپل ژوند پاینبت لپاره یې مراعتو؛مثال په پوهنتون کې زده کړې کو،دا زده کړې مو په پوره توګه خپلواکې نه دي، د یو لړ اصلوبو او د پوهنتون  قواعدو په نظرکې نیولو سره خپلو زده کړو ته دوام ورکو.
۴ــ عقیده(Belief): باور په یوه ټولنه کې د کلتور لپاره مهم عنصر او یو عام اصل دی چې د اجرا ذمه واري( ضمانت) سره تړاو لري او د ټولنې لوړ ارزښتونه هم منعکسوي لکه: د دیني اعتقاداتو اصول، د خدای(ج) پرستش کول، د لمانځه ادا کول، روژه نیول او زکات ورکول.

**۵ـ نښې(Symbols):** سمبولونه د انسانانو د حالتو ښکارندوی دي، ټولې فزیکي پدیدې( کلمه، غږ، څیز، احساس، بوی او...) پکې شامل دي؛ نښې معنا څرګندوي او یو بنسټ راښي، د بیلګې په ډول ملي بیرغ موږ ته هېواد رایادوي، ملي سرود مو د قومونو او د وحدت نښه ده.

**د کلتور ځانګړتیاوې(Features of culture)**

۱ـ کلتور یواځې د انسان ځانګړنه ده: الله(ج) انسان ته عقل او شعور ورکړی دی، ددې لپاره چې په ټولنه کې ښه ژوند وکړي او له نورو خلکو سره ښه چلند ولري؛ ټول انسانان په ټولنیز ژوند کې په زده کړو عمل کوي او حیوانات په ارثي توګه عمل لري، همدارنګه د انسانانو په پرتله یې زده کړې ځواک هم کم دی.

کلتور ځکه د انسان ځانګړنه ده چې ټولو شیانو ته نور ژوندي وجودات اړتیا نه لري مګر انسان د هغې په کولو له نورو موجوداو بیلوي. لکه په ځانګړو ادابو جومات ته ننوځي، پرنجیدل یو طبیعي عمل دی، خو له پرنجیدو وروسته انسانانو مختلف عمل څرګندوي، درې وخته خواړه او...

۲ـ کلتورونه د زمانې په اوږدو کې بدلیږي: څومره چې په کلتورونو وخت تیریږي هوغمره له لویو ستونزو او هغه ډول دودونو لرې کیږي چې ټولنې ته په لویه کې زیان اړوي ځکه یو ځل یې تجربه کوي او پاتې نسلونو لپاره یې بیا په هیڅ صورت نه وړاندې کوي، مطلب د ناوړه دودونو پرځای ښه دودونه رایجوي.

( فرهنګ یوه ژوندۍ پدیده ده، له دې کبله، باید متحرکه او خوځنده وي، دغې دریدنه د هغه مرګ دی)

۳ـ کلتور یوه نسبي پدیده ده: له دې څخه موخه داده چې هیڅ فرهنګ د ښه او بد وړ نه دی ځکه هرې ټولنې لپاره خپل فرهنګ تر هر څه ورته ښه کاري، ممکن داسې هم وي چې په یوه ټولنه کې یو عمل د فرهنګ بهترینه خوا وښي اما په بل فرهنګ کې به هغه د یو ناوړه دود په شکل منل شوي وي.

۴ــ کلتور د لېږد او زده کړې وړ دي: ددې په وضاحت سره ویلی شو چې زموږ کلتور له پخوا څخه راپاتې شوی دی، ددې فرهنگ له مخې خپلې د ژوند چارې مخته وړو؛ له لومړنیو نسلونو څخه موږ ته رالیږدیدلی دی او موږ هم د خپل فرهنگ په زده کړه مکلف یو.

۵ــ کلتور عام او ځانگړی هم دی: په ټولنو کې د کلتور عام مفهوم په دې معنا ده چې ټولنیزې ډلې د اقتصادي بنې، د خپلوۍ مقراراتو، دیني مناسکو،ژبې، هنر او ادبیاتو په برخه کې خپلې ځانگړې تگلارې لري او کلتورونه څکه ځانگړي هم دي چې کلتورونه د یوې ټولنې زېږنده ده، یعنې یواځې په هماغې ټولنې پورې تړاو لري .

٦ــ کلتور ثابت خو کله تغیر کوونکي دي: څرنگه چې ټولې ټولنیزې او غیر ټولنیزې پدیدې د وخت او ځای په په غوښتنه سره بدلون او وده کوي او مو ویل چې په ټولنو کې فرهنگونه زده کېږي او منل کېږي هم نو په دې وخت کې چې هم کلتور زده شي او هم ومنل شي نو کلتور یو ثابته بڼه غوره کوي چې بیا د نورو کلتورونو تر اغیز وروسته تغیریږي.

د بیلگې په توگه: د ډوډۍ خوړلو طریقه چې په مخکې وختونو کې خلکو په یو ډول لوښو کې اما اوس زیاتره خلک یې په بل ډول لوښو کې د دسترخوان او یا د میزونو په سر خوري چې موږ ته ثابت په ناست دسترخوان ښکاري اما تغیره شوي بڼه یې د میزونو ده.

۷ــ د کلتور منل اجباري او په عین حال کې اختیاري هم دي: انسانان له ژوند سره سم ژبه، دین، عقاید، ناسته پاسته او ارزښتونو په نظر کې نیول زده کوي که وغواړي او که ونه غواړي خو ځینې داسې په فرهنگ داسې شیان هم شته چې په اختیاري بڼه لري لکه د بیلابیلو هنرونو، علم او جسماني روزنه؛ که وغواړي زده کوي یې او که ورته اړ نه وي نو جبري مسله نه ده. دپورته زرینو معلوماتو په رڼاکې که له رسنیو بد څه خپاره شي نو دې ټولو ته زیان رسیږي او د له منځه تلو خطر یې زیاتیږي .

نو کـه چېرتـه پـه تلویزیون کې د یوې ټولنې د عقیـدې، کلتور خلاف پروګرامونـه خپرېږي، نو پـه ټولنـه کې بې حـده منفي اغېزکوي، پـه پایله کې د ټولنې وګړي بې بندوباره کیږي، د خپل عقیدې او کلتور احترام نه ساتي، نو چارواکي باید دې ډول خپرونوته جدي پاملرنه وکړي.

پـه اوس وخـت کې یې مثـالونـه د خصـــوصي تلویزیونونو هغـه خـارجي ډرامې او سریالونه دي چې زموږهیوادوال یې مسـوم کړي ، په کورونوکېوماشـومانوو، زنانه ، او ځانان یې ښـې یه خوند ګوري او پایله یې تاسـو په ټولنه کې ښـه احساسولی شی حال دا چې زموږ له کلتور ، مذهب وعقیدېسره په ټکر کې دي.

د بې ګټې تفریحي پروګرامونو خپرول:

د بې ګټې او مضرـو خپرونو خپورل عبث کار دی او عبث شـیان په اسـلام کې ناروا دي ځکه د انسان وخت ضایع کوي ، له کاره یې باسي ، نو درسنیو مسولینوته لازمه ده چې له خپل وخت څخه سـالمه ګټه واخلي او داسې څه خپاره کړی چې د ټولنې په خیر او ګټه وي .

په دې هکله (ســیف الرحمن رانا) (2009) لیکي: په تلویزیون کې له حده زیات، بې ګټې تفریحي پروګرامونـه پـه ټولنـه کې ډېر مضرـــ منفي اثرات لري، بـایـد لـه دې پروګرامونوڅخه مخنیوی وشي، په ځای یې ښـــوونیز، عقیدوي، معلوماتي او د ملي وحدت په هکله خپرونې خپرې کړی شي. چې له دغې عظیمې وسیلې څخه په زړه پورې مثبته او باارزښته ګټه پورته شي.

که چیرې موږ له رسـنیو څخه د بې ګټې خپرونو پر ځای ګټورې داسې خپرونې چې ملي ګټې او نوامیس پـه کې خونـدي وي خپرې کړو نو لویـه لاس تـه راوړنـه بـه مو کړې وي پـه نړۍ کې ډېرې تخنیکي وســایل ، او ماشـــین الات د تلویزیون له خوا ټولنې نشریږي ، هر څوک په کور کې ورته ناست وي او تخنیک زده کوي .

همدا رنګه هغه رسنۍ ،چې د ټولنې د عقیدې او کلتور خلاف فېشـني پروګرامونه خپروي، پـه کلکه یې و شي، د هغه په ځای د خپلې ټولنې اصـیل فرهنګي لباس او عقیدوي معلومات خپاره کړی شي او د ټولنې دښي روزنې لپاره داسې پروګرامونه خپاره شي، چې خلك د انســانیت، شرافت ،ســهولت او وحدت لوري ته وبولي، په پرمختـګ کې مهم رول ادا کوي، مهم بـدلونونـه منځ ته راوړي، چې ســړی ورځخه ســترګې نه شي پټولی په باکســتان کې د علامه اقبال پوهنتون د تلویزیون له لرې تدریسي بهیر لري په زرګونو خلک په کورناست او زده کړه کوي .

## انټرنیټ

انټر نټ د یویشـمې پېړۍ محصـول دی که په دې پېړۍ څوک په کمپیوټر او انټر نټ پوهه نه شي نو بې سواده ګڼل کیږي هغه ځکه چې که کمپیټر یا سمارټ مبیل نه وي نو له انټر نټ څخه ګټه نه شې اخستلی .

د نړۍ پـه دې تکنالوژیکي او ارتباطي دور کې انټرنیټ د انســان لپاره لویه بهتره ارتباطي او معلوماتي وسـیله ده، چې انســان یې په وسـیله وکولی شـول، د زمان او امکان فاصـلې لنډې کړي، د لسګونو کلونو فاصـلې یې څو ثانیو ته رالنډې او نږدې کړې، انټرنیټ سره له دې چې د رادیو تلویزیون، تیلیفون، مایکروفون، فلم، ویډیو او نورو ټولو ارتباطي وسـیلو د ښـېګڼو لرونکی دی او له دې پرته ښـه صفت یې دا دی چې کارونه ســاتلی، ریکارډ او محفوظ کولی شي او همدا رنګه په زړه پورې مختلف النوع معلومات له مختلفو نویو وېبسایټونو څخه راټولولی شي.

د انټرنیـټ یو بـل صــفـت، چې درونـد تمامیږي، هغه دا دی، چې نالوســتي خلك ورځخه ګټه نه شي اخېســتلی، فقط هغه خلك چې پوهه لري، له دې نعمت او مېوه لرونکې ونې څخه ګټه پورته کولی شي.

دنړیوال ډیجیټل گروپ په حواله په نړۍ کې په ۲۰۱۸ کال کې له څلورو بیلونو څخه زیات خلک انټر نټ کاروي ، نه پوهیږم چې موږ غریبان به هم پکې حساب یو که نه. په ۲۰۱٦کال په افغانستان کې ۲۲۷۹۱٦۷ خلکو انټر نټ کاراوو .
حال دا چې په ۲۰۰۷م کال کې تقریباً د نړۍ 1000 میلیونو څخه زیاتو خلکو له انټرنیټ څخه گټه اخېسته، چې اکثریت یې امریکایان وو، مگر په 2005 م کال کې چینایانو په نړۍ کې له انټرنیټ څخه زیاته گټه اخېسته چې تقریباً 20 میلیونو ته یې شمېر رسېده. په (2008) کال په نړۍ کې (1465) میلونو څخه زیاتو خلکو له انټرنیټ څخه کار اخېست چې زیات په چین کې کاریده (253) میلونه، بیا په امریکا کې (220) میلونه او له دې
هېوادونو وروسته په ترتیب سره جاپان (96) میلونه هند (60) میلونه جرمني (5، 25) برازیل (50) میلونه برتانې (8، 41) فرانسې (5، 36) جنوبي کوریا (35) ایټالیا (35) میلونه اوپاکستان (7) میلونو څخه زیاتو خلکو انټرنیټ استعمالاو. او هره ورځ په نړۍ کې تقریباً له (60) اربو (شپیته زره ملیون) زیات ایمیلونه د انټرنیټ په وسیله لیږل کیږي.
په 2009م کال کې د مخابراتو د وزیر امیرزي سنگین په وینا په افغانستان کې دوه میلیونه خلکو له انټرنیټ څخه استفاده کوله. په 2005م کال په پاکستان کې 5، 3 میلیونو کسانو له انټرنیټ څخه استفاده کوله. څنگه چې دا نعمت ورځ په ورځ د دویمې نړۍ د هېوادونو د وگړو لاس ته ورځي، نو ځکه یې د استعمالوونکو تعداد هم زیاتیمي. په انټرنیټ کې څه د پاسه 40 فیصده انگرېزي او په دوهمه درجه کې چینایي ژبه (18) فیصده خلك استعمالوي، د نړۍ او هېواد په اکثرو رادیوگانو کې خلك خبرونه د انټرنیټ له مختلفو وېبسایټونو څخه اخلي، خصوصاً د افغانستان اکثره مجلې، رادیوگانو د انټرنیټ په وسیله خبرونه له مختلفو وېبسایټونوڅخه ترلاسه کوي.

د انسانیت د اطلاعاتو او معلوماتو د چوپړ دغه بهتره وسیله د کمپیوټرونو اوفضایي سپوږمۍ په وسیله نړۍ سره نښلیوي. له کمپیوټراو مصنوعي سپوږمۍ پرته هېڅ امکان نه لري، چې له دې ذریعې څخه ګټه واخېستل شي.
د کمپیوټر لپاره تیوریك اصول په 1930م کال کې پیل شوي او په 1960 کلونو کې د امریکا په ځینو دفترونو کې ورڅخه کاراخېستل کېده، چې ډېرلوی و او په 1960م کال کې د نېټ (جال) خبره مطرح شوه. اصلاً انټرنېټ د ګڼ شمېر کمپیوټرونو شبکه ده، چې په ملیونونو یوه خوله (یوه ژبه) کمپیوټرونه سره نښلوي. (3: 7، 8).
انټرنېټ د کمپیوټرونو له یوې شبکې په 1969م کال کې پیدا شو، چې د امریکا دمتحده ایالاتو پوځ جوړه کړې وه. هدف یې دساینس پوهانو اوڅېړونکو تر منځ پوځي معلومات په اسانۍ اوچټکۍ سره تباده کول وو.
لومړی یې د څلورو هم ژبه کمپیوټرونو شبکه سره جوړه کړه او په 1984م کال کې د متحدهخ ایالاتو د ساینس ملي ټ،لنې پېنځه لوی کمپیوټري مرکزونه سره ونښلول او په کې پراته معلومات یې د هغو تعلیمي ادارو په واك کې ورکړل، چې ضرورت یې درلود. دې کار ښه نتیجه ورکړه او په 1987م کال کې د امریکې ډېرو ادارو له دې سستم څخه کار واخېست، په 1990م کال کې بالکل عام او سم جوړ شو، چې نن یې موږ د انټرنیټ (نړیوال جال) په نوم یادوو. (3: 8، 6، 5).

## انټرنېټ جوړوونکي کسان

څرنګه چې انسان د خدای ج یوعالي مخلوق دی، ډېر کم انسانان کله، کله لوړ، لوړ کارونه کوي. دانټرنېټ په لاره کې هم، چې د انسانانو لپاره یې په زړه پورې چوپړ کړی او کوي یې، څلورو کسانو ډېرې منډې ترړې کړې دي، چې هر یو یې نن ملیونر هم دی، چې عبارت دي له:
Paul Allen، Stew Jobs، Steve Wozniak او Bill Gates څخه.

د سټيوجابز او سټيو وژينګ ګډو شرکتونو د اپل کمپيوترونه جوړ کړل. پال الن او پيل ګيټس بيا د کمپيوټرونو ســافټ وير پروګرامونه وليکل، خلك يې په دې پوه او عام يې کړل. دوی خپل انجينران د واشــنګټن په ايالت کې په کار واچول، خلك يې وروزل او په نتيجه کې د کمپيوټرونو بازار تود شو، تر 1988م کال پورې کمپيوټرونه عـام، خو خواصـــو ورڅخه ګټه اخيســـته او په 1990م کال کې کمپيوټرونه عام او انټرنېټ هم وکـارول شـــو او په همدې کال (1990) کې د نړيوال جال يا ورلډ وايډ وېب جوړېدا ، د انټرنېټ په خپراوي کې انقلاب راوست.

ورلډ وايډ وېب چې د w.w.w په نام مشــهور دی، دهرې ويبپاڼې د پتې (ادرس) په سر کې يې ځای ونيو او پوهان يې داسې تعريفوي.

(نړيوال جال هغه ځای دی، چې متن اوتصوير په کې خوندي کيږي او د انټرنيټ په مټ دغه متن او تصوير هر څك ليدلی، کتلی او لوستلی شي.) (3: 5، 6، 8).

لنډه دا چې له دې نعمت څخه اکثريت انسانان ګټه اخلي، دحامد کرزي، په دوران کې‌و خارجي هېوادونو او مختلفو موسسو انټرنيټ په افغانستان کې عام کړ او اوس هغـه خلـك، چې پـه کمپيوټر پوهيږي برق ته لاس رسی ولري له کمپيوټر. څخه ګټه اخيســـتلی شي. د دولت په مختلفو وزراتونو اوعامه بازارونو کې انټرنېټ کلبونو ته ځي او خپل مشـــکل حل کوي اوس اوس دهېواد اکثره سرحدي ګمرکي دفترونه د انټرنېټ په وسـيله د مرکز سره وصـل دي همدا رنګه د هر ولايت د مســتوفيت په دفتر کې داسـې انټرنيټي تکنالوژيکي وسـايل نصـب دي چې مسـتقيماً ټوله ورځ د وزارت ماليې سره په ارتباط کې وي او که مســـوول کس ته په کار کې څه مشـــکل جوړ شي لـه مرکزي دفتر څخـه پـه همغـه ثانيه کې مشـــکل حلوي حتی دولاياتو د مصارفو چېکونه د نېټ په وسيله له مرکز څخه صورت نيسي. نور داسې وسايل هم شـــته چې ارتباطي وســـايلو لپاره يو څه مهم (کومك کوونکي) تمامېدلی شي. ددې

لپاره، چې ددې مهمو وسايلو په هکله څه معلومات حاصل کړو، لنډ، لنډ يې تشريح کړو.

**ټيلفون** (Telephone)

د ټيليفون پـه وســيلـه دو طرفـه ارتبـاط نيول کيږي، چې پـه عـادي ژوند کې خلك ورځخه په زړه پورې استفاده کوي. د امريکا غږ اشنا راديو په وينا (23/9/1388) نن ورځ په نړۍ کې 5، 4 مليارده خلك له ګرځنده مبايل څخه اســتفاده کوي څه فکر کوی چې په ۲۰۱۸ (۱۳۹۷) کال کې به څومره خلک له مبايل څخه ګټه اخلي ؟.

يوازې پـه افغانســتان کې ٦ مېلونه شـــاو خوا خلک تليفون کاروي نو نوره نړۍ خو ضرور له بيلونو اوښتي وي .

د تيليفون لـه اختراع سره پوهـانو راديو هم اختراع کړه، ګرامبيـل چې کلـه تيليفون اختراع کړ، هېڅا فکر نه کاوه، چې اواز به د تار په وسيله له يو ځای څخه بل ځای تـه انتقـال شي، چې د ګرامبيل په هڅو دا ګومان په حقيقت تبيدل شـــو او له دې وروسـته پوهانو کوښښ پيل کړ، چې داسې وسيله جوړه کړي، چې خطونه ولېږي او ياداسې تليفون جوړ کړي، چې له تار پرته پيغام ولېږي.

دا دی د ګرامبيل له هڅو وروســته د پوهانو، عالمانو، د منډو له برکته نن داســې ګرځنده (مبايل) تيليفونونه دي، چې د افغانسـتان په شـان بې وسه هېواد کې درې نيم ميليون البته ۱۳۸۸ کال کې او په ټوله نړۍ کې په لسـګونو ميليارده خلک له دې پرمخ تللې او تيزې وسيلې څخه ګټه بورته کوي.

**ويډيو**:

د ډله اييزو ارتباطي وسيلو بله ممده وسيله ويډيو ده، ويډيو د ټيپ په شان آله ده، توپير يې دومره دی، چې د ټيپ په وسـله موږ اواز او په ويډيو کې تصوير هم ګورو، د ټيپ د اورېدو په وســيله موږ دخپلې خوښــې شــيان (تصــوير او اواز) ليدلی او اورېدلی شو.

ارزښــت یې له رادیو او تلویزیون څخه ډېر کم دی، دهغو ځای ته نه شي رسـېدلی. ځکـه د رادیو او تلویزیون لـه لارې موږ پـه زړه پورې تازه، نوي معلومات، اطلاعات، خبرونـه او تفریحي پروګرامونـه اورو، د ټیـپ په هکله موږ فقط تفریحي پروګرامونه اورېدلی شـو. د ویډیو په وسـیله موږ فقط بعضـې پروګرامونه، مجلسونه یا محفلونه ریکارډ کولی شو، چې ارتباطي ارزښت یې نسبت رادیو اوتلویزیون ته ډېر کم دی.

فلم: د ډله ییزو ارتباطي وسـایلو یوه بله ممده وسیله فلم دی، ټامس ایډیسن یاینس پوه په 1889م کال کې یو داســې ماشــین جوړ کړ، چې په یوه وخت کې صرف یو سړي یو متحرك تصـویر لیده، چې کاینټوسکوپ نومېده، ددې ماشین په وسیله یې په 1894م کال کې په امریکا کې د بوکســنګ ننداره خلکو ته وښـوده او په 1896م کال کې دا ماشـین دومره مقبول او مشـهور شـو، چې په مسـلسله توګه یې خلکو ته متحرك فلمونه ښودل او په 1903م کال کې په برتانیه کې دنړۍ مشهور فلم ( The Great Robbery) جوړشو. همدا رنګه په ایتالیا کې

د نړۍ اوږد فلم کویډیسن جوړ کړ، مګر د یادولو وړ ده چې دا فلمونه ټول بې اوازه (صــامت) وو. په هند کې چې نن د نړۍ د مشـــهورو فلم جوړوونکو هېوادو له ډلې څخه دی، چې په 1912 کې لومړنی متحرك صــامت فلم جوړ شـــو. او په نړۍ کې لومړی ځل داسې فلم چې تصویر او اواز دواړه ولري ورزبرات (Wares Brother) په 1920م کـال کې جوړ کړ. پـه هنـد کې اواز لرونکی لومړی فلم په 1931م کې (عالم ارا) جوړ کړ.

فلم نن ورځ د نړۍ د ډېرو خلکو د ســاتېري یوه برخه ګرځېدلې، بعضــې هېوادونه خپل کلتور او فرهنګ د فلم له لارې خلکو ته ښــیي او نن په انســاني ژوند کې لوی رول اداکوي.

## د ډله ییزو ارتباطي وسایلو پرتلنه

سره له دې چې ډله اییز ارتباطي وســایل د انســاني ژوند په ټولواړخونو کې په زړه پورې رول ادا کوي. ټول د انساني ژوند د پرمختګ په چوپړ کې بوخت دي، مختلف اطلاعـات، معلومـات او تفریحي پروګرامونـه، څېړنې، لارښــوونې او ذهني خوراك (ذهني غنا)انسانانو ته برابروي، مګر بیا هم په خپل منځ کې څه توپیرونه سره لري، چې باید د ژورنالیزم عالمان او مینه وال پرې پوه شي.

(1) د راډیو خبر فقط اورېـدل کیږي. د تلویزیون خبر هم لیدل کیږي او هم اورېدل کیږي، مطبوعات لوســتل کیږي، په انټرنیټ کې لوســتل لیدل اورېدل درې واړه ځانګړتیاوې خوندې دي.

(2) د راډیو خبر بې تصــویره وي د تلویزیون خبر له متحرك تصــویرونو سره یو ځای خپریږي او د مطبوعاتو خبر له چاپي (صامت) تصویر سره خپریږي. په انټرنیټ کې خبر له ساکت او متحرك تصویر سره خپریږي.

(3) د راډیو خبر د الفاظو او کلمو ویلو سره په صــوتي بڼه خپریږي د تلویزیون خبر لـه متحرکو تصــویرونو او اغېز لرونکو خوږو اوازونو سره ترتیـب، بیـا خپریږي. دمطبوعاتو خبرونه له چاپي تصویر او د متن له لوستلو سره د انسان په فکر او ذهن کې تغییراتراولي.

انټرنیټ متحرك او اغېز متحرك تصــویرونه تحریري مواد د انســان له مؤثر اوازونو سره د انسان په ذهن موثر ګرځوي .

(4) د راډیو خبرونـه او اداره د حکومـت د کنترول لانـدې وي یو طرفـه معلومـات خپروي، تلویزیون هم دې تـه ورتـه د حکومـت د ادارې او کنټرول لانـدې وي او یو طرفه معلومات خپروي مطبوعات په ریښــتینې توګه د عوامو نماینده ګي کوي او

حقـایق خپروي د انټرنیټ خبرونه هم په حقیقي توگه د عوامو فریضـــه ادا کوي او حقـایق خپروي چې د عوامو نماینده گي وکولای شي ،خو په دې ۲۰۱۸ کال کې هغه هیوادونه چې ځواکمن دي خپل سرحدونه ، اداري ، ځمکه او فضا ساتلی شي ، او د هیواد په حریم کې خپرېدونکي مطبوعات (رســـنۍ ) ســـانســـوروي . لکه امریکا ، روسیه ، چین او خینې نور .

(5) راډیو د نړۍ په ټولو هېوادونو کې اورېدل کیږي د فاصـلې مشـکل یې له منځه وړی دی. خپـل غږ، معلومات، اطلاعات او خپرونې تر ډېرو لرې لرې ســیمو پورې رسـولای شي. تلویزیون هم د مصـنوعي سـپوږمکیو په وسـیله د فاصـلې مشـکل له منځه وړی دی او په ټوله نړۍ یې خپل چتر غوړولی دی. مطبوعات تر خاصوځایونو پورې رسیږي انټرنیټ هم تر ځانګړیو ځایونو پورې دا خدمت کولی شي.

(6) راډیو په انساني ذهن ډېر اغېز نشي کولای تلویزیون د متحرکو تصویرونو او اواز په وسـیله انساني ذهن تر خپل اغېز لاندې راولي، د مطبوعاتو د ټولو خبرونو یادول هېڅ امکان نه لري د انټرنیټ خبرونه د متحرکو او غیر متحرکو تصـــویرو د په زړه پوي اواز او تحریر په وســـیله انســـاني ذهن په مکمل ډول تر خپل اغېز او کنټرول لاندې راوستلی شي چې ژر یې انساني افکار تر اغیز لاندې راولي .

(7) د راډیو د ټولو پروگرامونو ثبتول غیر ممکن، او مشـــکل کار دی ، همدا رنگه د تلویزیون د ټولو معلوماتو اطلاعاتو او خبرونو ثبتولمشکل او سخت دي ، د مطبوعاتو د خبرونو او معلوماتو ثبتول اسان او ارزان کار دی، د انټرنیټ د خبرونو معلوماتو او اطلاعاتو ثبتول اسان مگرقیمتي کار دي ډېرو مصارفو ته ضرورت لري.

(8) د راډیو دخبرونو او خپرونو په اورېدو کې ډېرې غلطۍ کیږي ځکه مکمله توجه ورتـه نـه کیږي همـدا رنگه د تلویزیون په خبرونو کې دنه توجه له کبله غلطۍ منځ ته راځي د مطبوعاتو په خبرونو او معلوماتو باندې پوهېدل اسان کار دي په انټرنیټ

کې د اواز په اورېدو دمتن په لوستولو او یا د تصویر له لیدو هر څه اسان دي که په غږ پوه نه شي له متن څخه استفاده کیږي کولی شې چې به خپله خوښه یې ولولې .

(9) له راډیو څخه بې ســواده غریب او نابینا خلك هم په زړه پورې گټه اخیســتلی شي.

د تلویزیون متحرك تصاویر په ذهن باندې په زړه پورې اغیز کولی شي مطبوعات د سیاست پوهانو نظر ښه بیانولی شي چې راډیو او تلویزیون دا کار سم نه شي کولی، له انټرنیټ څخه بې ســواده غریب او معذور خلك هېڅ اســتفاده نشيــ کولی ځکه مصارفو او برق ته ضرورت لري او نا بینا خو بالکل ترې مستثنی دي .

(10) راډیو د اطلاعاتو خورا تېزه وســیله ده هر څوك ورته لاس رسی لري تلویزیون د اطلاعاتو تیز ترینه وسـیله ده خو ژر تصـویر نشيــ لېږلی هر څوك ورته لاس رسی نه لري او همدا رنگه برق او مصـارفو ته ضرورت لري، انټرنیټ تیز ترینه وسـیله ده له متن، تصـویر او اواز سره هر څه ژر ډېرو ساحو ته لېږلی شي د قیمت او مصارفو له کبله هر چاته نه رسیږي او په ځینو مواردو کې سواد ته هم ضرورت لیدل کیږي .

(11) تلویزیون د اواز او تصــویر په وســیله معلومات انتقالوي چې بې ســواده خلك ورڅخه اســتفاده کولی شي د وخت د کموالي له کبله یې ټول پروگرامونه لنډ وي د خبرونو ژبه یې ساده او عامه وي له سختومشکلو الفاظو، کنایو او متلونو څخه ډډه کوي نو خلـك یې پـه خونـد غور او دقـت سره اوري خو کـانـه او ړانده ورڅخه هېڅ اســتفاده نه شي کولی مگر د کونگیانو لپاره ځینې تلویزیونونه مختلف معلومات د اشـارو په ذریعه خپروي.ڼ او په خاصـو ځایونو کې اورېدل کیږي او په مخصـوصـو ځایونو کې ورڅخه استفاده کیږي.

له انټرنیټ څخه هغه خلك چې باسـواده وي په کمپیوټر پوهیږي اقتصـادي مشـکل ونه لري، برق ولري او په یوه ځانگړي ځای کې ناســت وي، اســتفاده کولی شي له راډیو څخه هر څوك په هر ځای کې چې لاس او غوږونه ولري اگر که مصرــوفه هم

وي استفاده کولی شي، مطبوعات عموماً هغه خلك چې سواد پوهه او سترگې ولري، استفاده کولی شي په مخصوص ځای کې پیدا کیږي د پوښښ ساحه یې کمه وي مختلف په زړه پورې معلومات او چاپي تصویرونه لري.

له پورته توپیرونو څخه په ډاگه معلومیږي چې په انټرنیټ کې د نورو ټولو رسنیو ځانگړتیاوې موجودي دي خو په دې شرط چې څوك علم ولري، لاس رسی ورته ولري، اقتصاد یې ښه وي، برق ولري او په کمپیوټر پوه شي هغه د شاعر قول دی چې وایي:

دبدخشان، کاڼي یې لعل گیا کیمیا ده چې یې نه پېژني دا گناه د چا ده

انټرنیټ بهتره ارتباطي وسیله ده مگر زمونږ هېوادوالو ته نه رسیږي ځکه چې برق، اقتصاد او بې سوادي هغه لاملونه دي چې مونږ یې له دې بهترې وسلې څخه بې برخې کړي یو ولې بیاهم ځینې ځوان باسواده خلک له نوړې وسیلې څخه بوره کټه بورته کوي ، په پوهنتونونوکې محصلان مجبوریږي چې د موضوعاتو په تړاو له نویو تازه علمي معلوماتو څخه گټه پورته کړي ، او نژدې ده چې د لوړ زده کړو وزارت په هڅو زموږ لوړې زده کړې دنورې نړۍ په شان نړیوالې شي ، دهمدې ورځې په هیله .

که چیرې زموږ پوهه نړیواله شوه نو لرې نه ده چې د نړۍ د پرمختگ ، پوهې ، علمیت ، طرقۍ ، تکنالوژي ، اومعلوماتو له کاروان سره به مو یو ځای او موازي حرکت پیل کړي وي .

د هغې ورځې په هیله چې زموږ ټول علمي قشر په نړیواله کچه د علم ، تکنالوژي او پوهې په کاروان کې له نړیوالو عالمانوسره یو ځای سفر وکړي ، د دې تمه زموږ له هغو ورونو څخه ډیره کیږي چې اوس اوس د نړۍ په مختلفو هیوادونو کې د ماستري او دوکتورا په لاس ته راوړلو مصروف دي ، په علم او تجربو یې برکت ، علمی ځلا یې تل روښانه او ژوند یې اوږد شه .

## منا قشه

اته کاله مخې مې د پوهیالی له علمي رتبې څخه د پوهنیاري علمي رتبې ته تر فیع کوله ، لومړی ځل وو به هیڅ نه پوهیدم چې څه وکړم ؟، څنګه یې وکړم ؟او څه ډول یې وکړم ؟

دا ټولې هغه پوښتنې وې چې زه به یې هر وخت زورولم . زه چې پوهنتونکې محصل وم نو موږ اړیکو د اساست په مضمون کې لس پاڼې نوټ درلود ، کله چې استاد شوم نو د همدې مضمون دتدریس دنده راکړل شوه ، هڅې مې پیل کړې چې د موضوع اړوند مواد پیداکړم ، کامیاب شوم دارتباط په نوم مې کتاب ولیکه ، چاپ شو ، د هیواد په مختلفو پوهنتونوکې تدریس شو ، په کادري ازموینو کې ترې پوښتنې جوړې شوې ، همدې ټکي ا د څو کاله تدریس په جریان کې له مختلفو پوښتنو ، نیمګړتیاوو، او ځینو اړتیاووسره مخ شوم نومې د دوهم ځل لپاره د ضرورتونو او نیمګړتیاوو ،او اړتیاو د پوره کولو لپاره متې را ونغښتې او د دوهم ځل د چاپ اراده مې وکړه .

چې غوټې پسې وهې په لاس به درشي      چا ویل چې دریاب کې ګوهر نشته

رښتیا هم که انسان هڅه او هاند وکړي، کولی شي چې موخو ته د رسېدو لپاره لوی، لوی کارونه وکړي او خپل هدف لاس ته راوړي. څو کاله مخکې مې د ژورنالیزم په لومړي صنف کې درس ورکاوه، د محصلینو لپاره مې 15 صفحې چېپټر درلود چې هغه هم د مختلفو پوهنتونونو د استادانو له خوا لیکل شوی و. هېڅ نوی کتاب او معلومات نه وو، چې موږ ورڅخه استفاده کړې وای، تل مې دا هیله وه، چې نوي معلومات پیدا او ګرانو محصلانو ته یې تدریس کړم، کله کله به خپل ضمیر ته ملامت شوم او دا فکر به مې کاوه، چې ولې د ارتباط په هکله د ژرنالیزم پوهانو څه نه دي لیکلي ؟ محصلانو به مختلفې پوښتنې کولې، بالاخره مجبور شوم، چې د اردو ژبې انټرنیټ سایټونو ته مخه کړم، څه مواد مې پیدا کړل. د اردواو انګلیسيـ ژبې

کتابونه مې لاس ته راوړل. هڅو ته مې دوام ورکړ، اخر په دې بریالی شـــوم، چې د اړیکو د اساساتو په هکله نوي معلومات او کتابونه لاسته راوړم.

سوال دا پیدا کیږي، چې ولې زموږ په ملي ژبو په دې برخه کې کار نه دی شوی؟

ځواب: زما په نظر سپېرو جگړو زموږ د خاورې علمي قشر ته دا موقع نه ده ورکړې، چې په دې ډگر کې کار وکړي.

د مهاجرتونو، سـختیو، دگاونډیو هېوادونو ظلمونو، د گران هېواد د تاریخ دښـمنانو موږ تـه دا موقع نـه ده راکړې، چې موږ دخپلې ټولنې لپـاره په هره برخه کې علمي او اساسي کار وکړو، بلکې د یو او بل په ضد یې سره جنگولي یو، زموږ علمي قشر یې وژلی، مســـموم کړی او یـا یې د یوې مړی ډوډۍ لپـاره پـه غیر مســـلکي کـارونو مصروف کړي دي، دا چې زموږ د عقیدې، تاریخ، پوهې او خاورې دښمنان د خپلو مضرـو پلانونو د عملي کولو لپاره دومره هوښیار، ځیرك او فعال دي، موږ افغانانو ته څه په کار دي، چې د دوی شوم پلانونه خنثی او له منځه یوسو؟

او یا هم زموږ پوهانو هسې وخت تیر کړی دی ، که علمي ترفیع یې کړې هسې یې ځـان خلاص کړی ، هغـه ملي مســـولیـت چې د وطنپـالنې ، دیـانـت او ملي علمي مسـولیت په توگه یې اوږه ورکړې ، په ایمنداري سره سرته نه دی رسـولی غفلت او سستي یې پکې کړې ده .

- افغانان باید له هر څه لومړ په مختلفو ډگرونو کې علم او پوهې ته مخه کړي.

- افغانان باید له اوسني چانس څخه، چې لاس ته راغلی په هر ډگر کې اعظمي گټه پورتـه کړي او پـه ځـانگړي ډول چې نن د میـډیـا او ارتبـاطـاتو دوران دی، افغـان حکومـت، دولـت او ملـت درې واړه پـه یو غږ او اتفـاق لومړي پـه علمي ډگر بیا په معنوي اومادي بیا رغونه کې لاس په لاس سره یوځای شي او داســې کار وکړي چې خپل کور د علم او پوهې په گانه سـنبال او د پرمختگ په میدان کې د سیالانو سره سـیال کړي او درې واړه (حکومت، دولت او ملت) د ملي یووالي لپاره له مېډیاڅخه

کار واخلي ځکه زموږ ټولنه بې علمه ده او په بې علمه ټولنه کې د میډیا تبلیغات ډېر موثر وي.

لنډه دا چې افغان علمي قشر نن ورځ هر یو په خپل مسلك کې باید داسې ژور او عمیق کار وکړي، چې سبا بل چاته احتیاج نه وي او تل د پوهې لاره خپله کړي، کله چې پوه شو بیا بری زموږ دی، ځکه سیدجمال الدین(رح) وایي: (ازادي په وینو او قربانیو ګټل کیږي؛ خو په علم ساتل کیږي.)

دا چې زما په شان یو بې تجربې انسان وکولی شول، چې د ارتباط په اړه په زړه پورې نوي معلومات راټول کړي، چې د وخت څه ناڅه غوښتنې پوره کولی شي، نو یو عالم، کار پوه او باتجربه کس ضرور کولی شي، چې د وخت او ضرورت مطابق په زړه پورې علمي څېړنې وکړي او ګرانو هېوادوالو ته یې په خپله ملي ژبه وړاندې کړي.

د هېواد ټولو عالمانو، پوهانو او باتجربه کسانو ته په کار دي، چې همت وکړي، د خپلو بچیانو علمي غوښتنې د خپلې پوهې، ملي احساس، علمي او انساني مسوولیت له مخې ادا کړي. زه د خپلې کمې پوهې او تجربې د لرلو له کبله له خپلې څېړنې څخه راضي یم، ځکه ما دارتباط، موضوع په ډېرو ځایونو کې د قرآن او نبوي (ص) احادیثو له مخې څېړلې، اوس نو د خپلو هڅو، زحمتونو او کوښښونو په نتیجه کې ضمیر دا اجازه راکوي، چې ما د خپلې خاورې بچیانو ته د ارتباط په هکله دومره څه راټول کړي، چې دعصر د غوښتنو مطابق کار ترې واخلو او همدا رنګه مې ټولو پوهانو ته دا سوال دی، چې د مظلومو افغانانو په حال ورحمیږي، د علم او پوهې په ډګر کې د خپل وس اوتوان کار وکړي. څو د پردیو له احتیاجه خلاص شو.

## پایله

انسـان د لوی څښـتن له ټولو مخلوقاتو په عقل او پوهه بهتر او لوړ هغه مخلوق دی چې نور ټول مخلوقات یې دده د ګټې لپاره پیدا کړي دي، انسان ته یې د خپل ژوند د ښــه تیرولو او له نورو کایناتو څخه د ګټې اخېســتنې لارې چارې ښــودلې چې د الله ﷻ دغه بهتر مخلوق په عزت او پت سره ژوند وکړي.

انسان ژوند د ښه تیرولو لپاره ارتباط ته ضرورت لري او له ارتباطه پرته ژوند ناممکن دی هر څه چې انسـان، د ادم علیه السـلام له پیدایښـت څخه تر قیامته پورې زده کوي د اړیکو په وسیله کیږي. الله ﷻ د سورة البقرې (31) ایت کې دې موضوع ته اشــاره کړې (**وَعَلَّمَ آدَمَ الأَسْــمَاء كُلَّهَا**) ددې ایت شریف په رڼا کې شــا ولي الله (دهلوي) فرمایي چې: ددې ایت په ذریعه الله د ځمکې او اســمانونو ټول علمونه او ټکنالوجي ادم ته وښــودله او تر قیامته چې انســان څه کشــفوي هغه د همدې ایت شریف په وسیله الله ادم ته ښودلي دي.

څرنګه چې موږ د ادم علیه الســلام اولاده یو نو ټول نوي کشــفیات، اختراعات او ټکنـالوجي زموږ پـه نزد نوي دي، الله ﷻ په ازل کې پرې پوهېده چې انســان به په مختلفو وختو کې د خپلو ضروریاتو مطابق پلټنې کوي او مختلف شیان به جوړوي.

یو وخـت انســان د خپلو روابطو او معلومـاتو لپـاره له کوترو، حیوانات له شــکلونو مختلفو نښـانو او حتی له اور، دود او داسې نورو شـیانو څخه کار اخېست وروسته یې تـاري تلیفون جوړ کړ پـه هغه یې قناعت ونکړ رادیو یې د معلوماتو اواطلاعاتو د لېږلو لپاره جوړه کړه د معلوماتو اواطلاعاتو د ښه وضاحت لپاره یې په تلویزیون لاس پورې کړ هغـه یې جوړ کړ. حرص لیونی کړ کمپیوټر، انټرنیټ یې جوړ کړ ځمکه یې ګام په ګام وکتله فضا ته یې مخه کړه او داسې وسایل یې جوړ کړل چې د ټولې دنیا له کونجونو څخه په څو دقیقو کې معلومات راټولولی او اخېستلی شي له دنیا څخه یې کوچنی کلی جوړ او په یوه ورغوي کې یې راغونډ کړ.

د انســان پورتنيو هڅو ته چې ځير شــو، دې نتيجې ته رســيږو چې دا ټول کارونه د ارتباط په وسـيله شـوي دي ځکه د علم، پوهې، تجربې، مشاهدې، نظريې، عقيدې، افکـارو، معلومـاتو او نظرياتو انتقال له يو څخه بل ته په اړيکو سره کيږي که اړيکې نه وای، نو د انسـانانو تر منځ د پورته ذکر شـوو اختراعانتو چې د مختلفو کسانو له خوا په مختلفو سيمو کې رامنځ ته شـوي دي، څنگه يو د بل څخه خبريدل يو د بل پوهـه نظريې، علمونـه او اختراعات يې تعقيب کړي بالاخره دې پايلې ته رســېدلي چې داسې نوي او نادره وسايل منځ ته راوړي.

ددې لپاره چې انسان خپل معلومات، پوهه، تجربې او مافی الضمير په لږ وخت کې ډېرو خلکو تـه ورســـولې شي هغوی له اغېز لاندې راولي، د خپلو افکارو منلو ته يې تيـار کړي. خپـل کلتور، ثقـافت اوعقيده په هغوی ومني د انســـانانو له جســـمونو مخکې دهغوی ذهنونه له خپل اغېز او کنټرول لاندې راولي نو يې د ډله ييزو رسنيو لپاره مصـنوعي سـپوږمۍ جوړې کړې او د خپل فعاليت وزرې يې خپرې کړې ټوله نړۍ يې د خپلو معلوماتو، اطلاعاتو او تبليغاتو له سيوري لاندې کړه.

ددې لپـاره چې موږ لـه دې نويو اختراعـاتو او ډلـه ييزو رســـنيو څخـه مثبتـه گټـه اخيسـتې وي نو لازمي ده چې په دې هکله لنډ او خلاصه معلومات ولرو په اغېز يې پوه شـو او په داسې طريقه يې استعمال کړو چې د هېواد، ټولنې، کلتور، عقيدې او بيـا رغونې په لار کې ورڅخه کار واخلو او وخت مو له لاســه لاړ نه شي چې په دې ليکـه کې مېډيا (راديو، تلويزيون، مطبوعات، انټرنيټ) په زړه پورې کردار ادا کولی شي.

نن ورځ د ميډيا اغېز له لمر څخه روښانه دی ټوله نړۍ يې څلورم قوت بولي، څوك يې (نعوذ بـاالـله) دوهم خـدای بولي ځينې پوهان د ميډيا خبرونو ته جادويي مرمۍ وايي څوك يې د عوامو ترجمان دحکومـت او ملـت تر منځ پل بولي، څوك وايي: چې ميـډيـا د ټولنې او حکومـت لپـاره د خولې اوغوږونو حيثيـت لري، څوك يې دټولنې

دثقافت اوکلتور ظاهروونکي او رسوونکې بولي، څوك يې هغه دفاعي قوه بولي چې د هر ځواکمن د تکبرښـــکر مـاتوي او د مظلوم ملـت اواز پورتـه کوي، څوك يې د پرمختګ لپاره بهترينه او اعلی وسيله بولي.

دا چې ډله ييزې ارتباطي وسايل دومره ښېګړې لري، چې دټولو تاثيراتو بيانول يې له امکانه وتلې خبره ده نو زموږ په شــان پاتې ټولنه کې چې څه د پاســه (30) کاله د جنګ سپېره اولوغړنه کمبله مو په هېواد غوړېدلې ده په څه ډول ورڅخه ګټه واخلو په داسې حال کې چې زموږ د هېواد په مرکز او ولايتونو کې په لس ګونو راديويي او تلويزيوني ستېشنونه او په سلګونو چاپي خپرونې کار کوي.

دا چې دغه وســايل د هېواد او ټولنې د عقيدوي، کلتوري، ســياسي، اقتصــادي او فرهنګي پولو د ســاتلو لپاره په زړه پورې کردار ادا کوي بايد د هېواد مســوولين او عوام (حکوم او ملت) چې مسـلمانان دي د اسلامي عقيدې، ګران هېواد افغانستان او دخپل اصيل اسلامي فرهنګ په ساتلو کې ورڅخه په زړه پورې کار واخلي، چې مو له دې مؤثرو وســايلو څخه رغنده کار اخيســتی وي، الله ﷻ د العمران ســورت په اخري ايت کې دې موضــوع ته اشــاره کوي او فرمايي: (يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُواْ اصْــبِرُواْ وَصَابِرُواْ وَرَابِطُواْ وَاتَّقُواْ اللّهَ لَعَلَّكُمْ تُفْلِحُونَ) – العمران، 200)

ژباړه: ای د ايمان خاوندانو! دمشـکل په وخت کې له صـبر څخه کار واخلئ او نورو ته په صبر توصيه کوئ دباطل د مقابلې لپاره چمتو اوسئ، په هر حال کې له خدايه ووېرېږئ، نو بری به ستاسو وي.

مفتي محمد شـفيع ليکي: چې په دې ايت کې د (رابطو) لفظ له ربط څخه اخيستل شوی چې د تړلو او پيوسته کولو مانا ورکوي. نو له دې کبله د رباط مانا ده د جنګ لپاره د اســونو تړل، په قرآن او احاديثو کې پورته لفظ د دوو معناوو لپاره اســتعمال شــوی دی، چې يوه مانا يې د اســلامي سرحدونو د حفاظت او ســاتنې لپاره ده چې مسلمانان پخپلو مروجه وسايلو د خپل هېواد ساتنه وکړي.

ځرنګـه چې نن میـډیـا (رادیو، تلویزیون، مطبوعـات، انټرنیـټ...) دې ډګر کې ډېر بریالی او په لومړۍ درجه ارزښـت لرونکي وسـایل دي باید د هېواد ټول وګړي ورته متوجه وي او داسـې رغنده کار ترې واخلي چې زموږ د عقیدې، پرمختګ، ښېګړې، د هېواد د اصــیلو بچیانو دروزنې لپاره د علم او پوهې مرکز او د هېواد، د بیارغونې لپاره د یو اصـیل معمار او هم د عقیدې، کلتور، سـیاسـت اوفرهنګ سرحدونه پرې وسـاتو او د یو ثابت مسـلمان محافظ په څېر ورڅخه کارواخلو چې وکولی شـو، خپل هېواد د نورو ګـاونډي هېوادونو سره د ســیالۍ په قطار کې ودروو، د بدبختیو، بې اتفاقیو، جنګ او ورور وژنې ټغر ټول کړو، او هم ددې وسایلو له لارې داسې تبلیغات او خپرونې وکړو، چې د الله ج په خاوره کې د الله ج د نظام لپاره لاره هواره کړو؛ څو افغـانان پخپل منځ کې د وروڼو په څېر یو بل سره ژوند وکړي او د پردیو دښــمنانو کرغېړن هدفونه، چې زموږ په وژنه کې خپلې ګټې لټوي، له خاورو سره خاورې کړو. هیله ده چې زمونږ دهېواد چارواکي، په ځانګړي ډول هغه مسوولین چې د رسنیو په راس کې ځای لري د خپل هېواد او ټولنې د ښــې لارښــوونې، معنوي، اقتصــادي، فرهنګي او سیاسي ابادي او جوړښت په لاره کې له دې وسایلو څخه کارواخلي، چې په پایله کې د پردیو له غلامۍ خلاص او خپل ګران هېواد په هر ډګر کې له سیالانو سره سیال کړو.

دغه ټکي زه هم وهڅولم چې د موضوع په هکله په زړه پورې معلومات راټول کړم او پخپلـه مورنۍ ژبـه یې د هېواد، د علم او پوهې بچیانو ته د کاغذ په مخ ولیك، هیله ده چې ګټور تمام شي او د هېواد په معنوي ابادۍ کې زه هم د مشت نمونه خروار په اندازه برخه ولرم.

**وړانديزونه مو ټول علمي قشر ته دادي چې !**

- هر مسـلکي علمي شـخص دې په خپل مسـلک کې په هغو موضوعاتو کار وکړي چې زموږ ټولنه ورته جدي ، علمي ، مسلکي او تجربوی اړتيالري .
- هر مســلکي علمي شـخص بايد خپلې علمي تجربې د قاغذ پرمخ او دقلم پر ژبـه د هېواد مظلومو بچيانو ته پريودي ، هســې نه چې د ده له مرگ سره يوځای د ده علم هم له خاورو سره خاورې او يا له ده سره يو ځای په قبر کې خښ کړی شي .
- هر ژوندی عالم بايد زموږ د لرغونو او تاريخي پوهانو نظرياتو څخه سالمه گټه پورته کړي ، نيمگړتياوې يې پوره کړي ، علمي حق يې اداکړي او نوم يې د تل لپاره ځلانده وساتي ، ځکه موږ افغانان پس له مرگه خپل عالمان او پوهان پيژنو .
- هغه نوي علمي کادرونه چې مالي او علمي سـپورټ  ته ضرورت لری بايد وې نـازوو د همکـاري لاس ورکړو څو نوې اختراع وکړی چې ځينې نمونې يې موږ په تلويزونو کې گورو چې زموږ ځوان قشر  ايکجاد کړي دي .
- ځينې مسلکي علمي خلک په داسې موضوعاتو علمي ترفيع لپاره کار کوي چې فعلا پـه ټولنـه کې ورته جدي اتيا نه ليدل کيږي ، فقط علمي تر فيع يې غرض کړې وي فکر کوم دا بـه لـه ځوانـد قشر ـــ سره جفا وي بايد په داسې موضوع کار وکړی شي چې زوموږ يوه ضروري اړتيا پوره کړی شي .

## ماخذونه


۱:- قرآن عظیم الشـــان، ســـوره بقره، ال عمران، شـــوری، طه، الرحمن، حج، لقمان، المائیده، الفرقان، النحل، حما السجده.

۲:- احادیث نبوي (ص) د امام بخاري او مسلم شریف حدیثونه.

۳:-افتخار،محمد حسین (۲۰۱۳) کمونیکشن سټډیز،مولوی شوکت پبلیکشن لاهور.

۴:-:- افتخار،محمدحسین (۲۰۱۵) .(کمونیکشن سټډیز، لیت پبلکشن لاهور.

۵:-:- افروز ،غلام محمد (۱۳۷٦) روان شـناسي شـایعه وروشهای مقابله، دفتر نشر **فرهنگ اسلامي چاپ دوم تهران.**

۲۵:- اجمل ،ولي (۲۰۰۰) ذرایع ابلاغ اور اسکې تحقیقي طریقې، ، عظیم اکاډیمي.

٦: بدر ,محمد، سعید (۲۰۱۱) ابلاغایات پارټ ۱، ، مکتبه دانیال لاهور

۷:- بدر ,محمد.سعید(۲۰۱۳)، ابلاغیات پارټ ۲، ، مکتبه دانیال لاهور.

۸:-پسرـــلی، ایمـل (1386) ان لاین ژورنالیزم، د افغانســـتان د کلتوري ودې ټولنه، جرمني- دویم چاپ.

۹:- تسل ،احمدرسول (۱۳۹۲)، رسنۍ او ټولنه ، ختیځ خپرندویه ټولنه ،جلال اباد.

۱۰:-ثاقب ,ریاض (۱۳۸٦)، نوې خبریالي ، دانش خپرندویه ټولنه ، پېښور .

حمیـدي، میرزا علم (1383) ژورې خبرې، دانش خپرنـدویـه ټولنـه، پېښـــور، دویم چاپ.

۱۱:- حفیظ، ناصر، شیخ ابوواح (2007) نقوش صحافت، مجید پك ډپو، لاهور.

۱۲:- رانا، سیف الرحمن (2009) جدید صحافت، ډوگر بپلشرز، لاهور.

۱۳:- رضـوي، ایف کې (2009) جدید صـحافت، جوهدري غلام رسـول اینډ سـننز، پبلشرز، لاهور.

۱۴:- زيني، سيد عبيد الاسلام )1375) اسلام او ژورناليزم، د اتحاد اسلامي فرهنګي ټولنه، پېښور.

۱۵:- سعادت، سارا (1388) ملي ترمينالوژي، بېنوا فرهنګي ټولنه، کندهار.

۱٦:- شاد، چوهدري شهزاد احمد (2006) پاپولر صحافت، بهټي سنز پبلشرز، لاهور.

۱۷:- شاهد، اېس ايم (1385) مطالعه صحافت، ژباړونکی اميرجان وحيد احمدزی دانش خپرندويه ټولنه، پېښور.

۱۸:- عزيز، مولوي سلطان عزيز (1387) عزيز التفاسير، دارالکنز العلمية، پېښور.

۱۹:- ګيلاني، سيد نديم الحسن، انجم اقبال، (2008) شهکار صحافت، عظيم اکاډمي، لاهور.

۲۰:- ملک،محمد موسی،ژباړن مير احمد ياد (۱۳۹۴) سياسي ټولنپوهنه ، علمي خپرندويه ټولنه پکتيا.

۲۱:- ميرزا، محمديوسف، همايون، خالد (2006) تفهيم صحافت، عظيم اکاډمي، لاهور.

۲۲:- ملك، کپټن لياقت علي (2008) امور صحافت، ډوګر پبلشرز، لاهور.

۲۳:- مشواڼی، عبدالقيوم زاهد (1385) پښتو، پښتو سيند، علو اکاډمي د پښتو څېړنو مرکز، کابل.

۲۴:- ملك، محمد موسی، رشيد شازيه (2009) ناياب اصول صحافت، جدراڼ پبلشرز، لاهور.

۲۵:- ميرزا ,محمد(۲۰۰٦) تفهيم صحافت، ل عظيم اکاډيمي اهور.

ناظم محمد(۱۳۹۱) دعامه ذهنونو دروښانولو سرچينې ، خيبر خپرندويه ټولنه پېښور.

۲٦:- نيازی ,محمدخان (۱۳۸۷) ارتباط، دانش خپرندويه ټونه، پېښور.

۲۷:- نژاد،محمدکاظم (۱۳۹۵) سیاسي تبلغات مومند خپرندویه ټولنه جلال اباد.
۲۸:- هاله ،حبیب الرحمن (۱۳۷۱) افکارعامه وتبلغات ، وفا ټولنه پېښور.
۲۹:- وفا،هدایت الله (۱۳۹۱) تاثیر تبلغات درفرایند ایجادتحول وتغییرافکار عامه ،انتشارات پژوهش کابل.